وذكر فان الذكرى تنفع المؤمنين








# فرمودات

حضرت صاحب المرتبت شیخ القرآن والحدیث پیرطریقت

رهبرشریعت الحاج خلیفه صاحب دین محمد مدظله العالی

خلیفه مجاز

حضرت شیخ المشائخ خلیفه صاحب داد محمد غزنوی مدظله العالی

## جلد دوهم

ناشر
خانقاه عالیه مجددیه عمریه
ډیره اسماعیل خان

وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ

# انوار المجالس

دویم جلد

فرمودات

شیخ القرآن و الحدیث پیر طریقت رهبر شریعت شمس المشائخ الحاج خلیفه صاحب دین محمد مد ظله العالی

خلیفهٔ مجاز

حضرت شیخ المشائخ خلیفه صاحب داد محمد غزنوي مدظله العالی

خپرونکی

خانقاه عالیه مجددیه عمریه

روح المدارس روحانیه (ډیره اسماعیل خان)

# کتاب پېژندنه:

نوم : انوارالمجالس

فیوضات : شیخ القران والحدیث حضرت

خلیفه صاحب الحاج مولوي دین محمد مدظله العالی

تولونکی اوترتیب کونکی : مولوي سید محمد عمرفاروقي

کمپوزران : مولوي محمداکرم نعماني،

فضل الرحمن فضلي او ولي محمدتائب

دوم چاپ : دویم جلد / ۲۰۰۰ توکه

دچاپ کال : ۱۴۳۲ / محرم الحرام — ۱۳۹۰ل قوس



خپرونکی : خانقاه عالیه مجددیه عمریه

روح المدارس روحانیه (دیره اسماعیل خان)

# ډالۍ

زما دا ناچیزه هڅه ، هغه هم که قبوله شي ، نو ثواب یې خپل پیراومرشد جناب شیخ القران والحدیث قطب المشائخ خلیفه صاحب مولوي دین محمد اخندزاده (درزمت خلیفه صاحب ) ته ډالۍ کوم.

(سیدمحمدعمرفاروقي )

| مخ | فهرست | شمېره |
| --- | --- | --- |
| ۱ | (۲۱) مجلس / په ذواتِ فاضله وو باندي د ...... | ۱ |
| ۱ | توسل په درې قسمه ده | ۲ |
| ۵ | دنيك مسلمان په مرگ باندې زمكه او...... | ۳ |
| ۸ | د حضرت نبي كريم ﷺ په وېښتانو تبرک | ٤ |
| ۸ | د حضرت نبي كريم ﷺ په نوكانو تبرک | ۵ |
| ۹ | دنقشبندلي مباركي د شجري د ويلو فائدې | ٦ |
| ۱۲ | دنيكو خلكو دنومونو په واسطه په هغه.... | ۷ |
| ۱۵ | دلطائفو په وخت كې دعاوې | ۸ |
| ۲۰ | (۲۲) مجلس / په عباداتو كې د حضور.... | ۹ |
| ۳۰ | د حضرت علي ﷺ د لمانځه په وخت كې.... | ۱۰ |
| ۳٤ | ۲۳ مجلس / د روژې د مياشتې اهميت | ۱۱ |
| ۳۷ | حضرت ضياء المشائخ قدس الله سره....... | ۱۲ |
| ۳۹ | له عاجزو خلكو سره پام كوئ ! | ۱۳ |
| ٤۳ | ۲٤ مجلس / د فقهې او تصوف په اصطلاح.... | ۱٤ |

# (۲۱) مجلس

## په ذواتِ فاضله وو باندې د توسل دثبوت بیان

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ وَٱبْتَغُوٓا إِلَيْهِ ٱلْوَسِيلَةَ ﴾ [سورة المائدة]

ترجمه: ای هغو کسانو چې تاسو ایمان راوړی تاسې خدای تعالی ته طلب د وسیلې کوئ!

## وسیله

### توسل په درې قِسمه ده:

۱ ـ په اعمال صالحه سره الله پاکﷻ ته توسل.

۲ ـ په مبارکو ذواتو سره توسل الله پاک ته.

۳ ـ د مبارکو ذواتو د آثارو په وسیله توسل اللهﷻ ته.

په اولني توسل سره د ټولو علماء کرامو اتفاق ده چې په اعمال صالحه وو سره توسل صحي ده، هيڅ څوک ورڅخه انکار نه کوي.

دوهم توسل په نیکو اشخاصو او ذواتو سره ده، دا توسل په خپل کور کې په دوه قسمه ده. یوداده چې الله پاکﷻ ته یوذات وسیله کوې اوهغه ژوندی وي. دوهم داسې توسل ده چې داسې یوڅوک

الله تعالیﷻ ته وسيله کوي چې هغه شخص مړ وي . اوس په دې کې چې يو شخص ژوندی وي او ته يې الله پاکﷻ ته وسيله کوي په دې کې هم اکثره علماء کرام متفق دي اوځه اختلاف پکې نشته مطلب داچې دا توسل جائز ده.

مګر داچې يو نېک شخص وفات شوی وي اوته يې الله پاکﷻ ته وسيله کوې نو آيا په دې باره کې څه جواز شته که نه ؟ نو وهابيان ( غير مقلدين ) او علامه ابن تيميه په دې قائل دي چې دا کار جائز نه دی.

ائمه کرام احناف بيا دا وايي چې که يو شخص الله تعالیﷻ ته محبوب او مقبول وي هغه که بيا مړ وي اوکه ژوندی په دواړو حالاتو کې په دغه شخص سره توسل جائز دی، حاضر وي اوکه غائب په دواړو حالاتو کې توسل جائز دی.

يو صحابي مبارک ﷺ چې په دواړو سترګو ړوند و ، دی حضرت نبي کريمﷺ ته راغی او ورته يې وويل چې: ماته دعا وکړه ترڅو مې سترګې روغې شي ! حضرت نبي کريمﷺ ورته وفرمايل چې: که په دې حالت صبر وکړې اجر به يې ډېر وي ، خو دغه صحابيﷺ بيا په خپله خبره ټينګار کاوه چې که مې سترګې روغې شي نو زه به نور هم نېک اعمال ډېر کړم، نو حضرت نبي کريمﷺ ورته وفرمايل چې: ولاړ شه اودس وکړه او دوه رکعته لمونځ وکړه، له لمانځه وروسته د الله تعالیﷻ حمد او ثنا ووايه، په ما باندې درود ووايه او بيا دعا وکړه. په دغې دعا کې نبي کريمﷺ ورته دا الفاظ ښودلي دي چې: ﴿

**الهي بجاه نبيك المصطفى** ﴾ اى خدايه ستا د ګران پيغمبر په واسطه مې سترګې روغې کړې. له دې سره په هغو الفاظو کې چې حضرت نبي کريمﷺ هغه صحابي‌ﷺ ته وربښودلي دا هم شته چې: ﴿ **يا محمد انى اتوجه بك الى ربنا فاشفع لى** ﴾ يا رسول الله! زه په تا باندې خپل رب ته وسيله جوړوم نو ته زما په باره کې سفارش وکړه. ددې دعا په آخر کې دا الفاظ راځي ﴿ **اللهم شفعه فينا** ﴾ اى خدايه! دده شفاعت زما په باب کې قبول کړې.

نو اوس سره له دې چې حضرت نبي کريمﷺ په دغه مجلس او لمانځه او دعا کې له دغه صحابي ﷺ سره نشته هغه يواځې اودس، لمونځ او دعا کوله خو حضرت نبي کريمﷺ يې الله تعالىﷻ ته وسيله کړى او الله تعالىﷻ يې سترګې ورته جوړې کړې.

همدارنګه کله چې حضرت نبي کريمﷺ لا دغې دنيا ته تشريف نه وو راوړى نو چې د اهل کتابو به له نورو مشرکينو او کفارو سره جنګ شو نو تورات به يې راواخيست او هغه آياتونه چې په هغو کې د حضرت نبي کريمﷺ صفات وو په دغو آياتونو به يې ګوته کېښوده چې اى خدايه پاکه! ددغه پاک نبي په واسطه چې تا له مونږ سره دهغه د پيدايښت او بعثت وعده کړې دهغه په واسطه مونږ ته په دښمن باندې کاميابي راپه برخه کړې. نو الله تعالىﷻ به هغو اهل کتابو ته په مشرکينو او نورو کفارو فتحه ورکوله. لکه چې په خپله الله تعالىﷻ ددې واقعي تصديق په قرآن کريم کې کوي ﴿ وَكَانُوا

مِن قَبۡلُ يَسۡتَفۡتِحُونَ عَلَى ٱلَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ او همدا اهل کتاب و چې مخکې به يې دده په وسيله په کفارو باندې د فتحې غوښتنه کوله.

نو حضرت نبي کريمﷺ سره له دې چې پيدا هم نه ده، يواځې يې له دوی سره د پيدايښت وعده په تورات کې شوې وه، نو دهغهﷺ په وسيله به دوی سوال کاوه او الله تعالیٰﷻ به دوی ته فتحه ورکوله.

د حضرت نبي کريمﷺ له رحلت څخه وروسته چې حضرت ام المؤمنين حضرت عائشه صديقيه رضی الله عنها ته صحابهٔ کرام﷢ راغلل چې سخته وچکالي ده، سخته قحطي راغلې ده، ته دحضرت نبي کريمﷺ مبارکه بي بي يې، ته راته دعا وکړه چې الله تعالیٰﷻ په مونږ باندې درحمت باران وکړي. حضرت ام المؤمنين رضی الله عنها ورته وويل چې: داسې وکړئ چې د حضرت نبي کريمﷺ د مبارکې روضې د بام چت د رسول اللهﷺ د مبارک قبر په برابرې سوری کړئ چې د آسمان فضا ورڅخه ښکاره شي نو کېدای شي چې الله تعالیٰﷻ خپل رحمت نازل کړي. صحابهٔ کرامو﷢ همداسې وکړل چې دحضرت نبي کريمﷺ د مبارکې روضې چت يې ددهﷺ د قبر په برابرې سوری کړ نو داسې باران وشو چې ټولې ځمکې يې سېرابه کړې. دا کار د حضرت نبي کريمﷺ له رحلت څخه وروسته شوی.

محدثين کرام ددې وجه دا ليکي چې: د آسمان او ددهﷺ د مبارکې روضې ترمنځ دغه چت پرده جوړه کړې، کله چې دغه چت لرې شو

، دده ﷺ قبر مبارک ښکاره شو نو آسمان په ژړا شو او دده له ژړا نه ځمکه سېرابه شوه.

دکفارو په باره کې الله تعالی فرمايي: ﴿ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَآءُ وَالْأَرْضُ ﴾ پردوی باندې اسمان اوځمکې نه دي ژړلي چې مړه شي هم اسمان او ځمکې نه ور باندې ژاړي ددغه نه دامعلومېږي چې په مسلمان باندې اسمان هم غمجن کېږي اوياهم اسمان اوځمکه ورباندې ژاړي.

## د نیک مسلمان په مرګ باندې ځمکه او اسمان ژاړي

حضرت سعد بن معاذ ﷺ چې وفات شو نو حضرت نبي کريم ﷺ فرمايي: چې دده په مرګ باندې عرش عظیم په حرکت شو. ولې په حرکت شو ؟ ياداچې هغه دده روح چې عرش عظیم طرف ته خوت دهغې له وجې هغه ولړزېده ياداچې دده نيک اعمال اسمان طرف ته پورته کېدل هغه بندشول نو عرش عظيم په حرکت باندې راغی. نو دحضرت رسو ل الله ﷺ د قبر په ليدلو باندې وايي اسمان په ژړا شو داسمان د ژړا نه خدای ﷻ دا خلک ټول سيرابه کړل دحضرت اسماء رضی الله عنها چې د حضرت نبي کريم ﷺ خوښينه ده دهغې نه روايت دی چې دحضرت نبي کريم ﷺ يوه شپه زموږ سره وه دده دوفات نه وروسته به چې د موږ په کور کې کله مريض پيدا شو په هغه شپه به مو او به تېرې کړې بيا به مو هغه مريض ته

ور کړي هغه به وخکلي بیا به خدای پاک هغه مریض ته صحت
ورکاوه حضرت ابي ایو ب انصاري د روم په جنګ کې لګیا ده په
مقابل کې درو میانو په لکاوو فوجو نه دي دیو مجا هد صحابي
مخامخ ور باندي ور منډه کړه په دا فوج دکفارو ور ګډ شو دیوې او
بلې خوانه صحابه کرامو ور باندې ناري کړي چې خدای پاک خو
وایي ﴿ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ ﴾ په خپلو لاسو نو ځان هلا کت ته
مه اچوئ دا خو دي ځان هلا کت ته وا چاوه حضرت ابي ایو ب
انصاري ور ته وایي چې نه تا سې غلط یاست ددغه آیت دغه مطلب
نه ده دا آیت دموږ دانصارو په باره کې نا زل شوی دی کله چې
فتحي دمسلمانان ډېرې شوې نو موږ انصارو په پته په خپل ما بین
کې مشوره وکړه چې مخکې خو ډېر ضرورت و خپل ځان او مال مو
تول په دین لګول اوس خو مسلما نان ډېر شول دنیا وې پیدا شوې
نو درخې چې لیږ لیږ دا خپل کارو بار شروع کړو دنیا لیږ ډېره کړو
باغونه او ځمکه لګ برابره کړو خدای پاک آیاتونه نازل کړل چې ځا
نو نه هلا کت ته مه اچوئ چې ځان او مال دې په دین ونه لګول نو
دین به غریب کیږي نو بیا به خپله هلاک کېږئ او کفار به دریا ندې
غا لبه کیږي نو حضرت ابي ایوب ددغې نه انکار وکړ.بیاحضرت
ابي ایوب په دغه حالت کې مخکې روان روان تر څو چې دی
هم شهید کیږي اوبیادشهادت په وخت کې وصیت کوي زمامړی به
دقسطنطوني دېوال ته نږدې کفاروته ورخښوئ مرقات لیکي چې
پس له مرګه به خلک ورتلل دده قبرمبارک ته دده په قبر باندې
بلیې تبرک حاصلولو اودده دقبر په سبب به یې دمرضو شفاء

غوښتله نو خدای پاکﷻ به شفاء ورکوله نوداتبرک په ذوات فاضلوپس له مرګه دده ده.نو مطلب مې دادی چې یووارسړی دخپل خان په باب کې تقصیرات ویني ددغو دتقصیراتودمعافي لپاره فقط یوه دغه لار نه ده چې صرف په عبادت زوروکړي خدای پاک ته چې دسړي وس رسیږي باید په هر عنوان وسیله طلب کړي په عمل صالح کې چې دسړي وس رسیږي دادې کوي خدای پاک ته وسیله ده دهغه په سبب به خدای پاک مغفرت ورته کوي.نیک ذوات دی خدای پاک ته واسطه کوي کوم شخص ته چې په ژوند کې ورځي یاکوم زیارت ته چې ورځي پس له مرګه په دواړو کې دی په صحیح نیت ورځي څومره چې دده نیت سم وچې ددغه شخص په واسطه خدای پاک زما داجرمونه معاف کړي که ژوندي ته ورځي خوهغه وسیله ګرځوي خدای پاک ته خو دنیک عمل په واسطه یې وسیله ګرځوي اوکه مړي ته ورځي هغه زیارت مبارک وسیله ګرځوي خداوند متعال ته خو دنیک عمل په په وجه یې ګرځوي چې اې خدایه پاکه داخو دستا دوست ده ته ددغه خپل دوست په واسطه ماته دخپلو ګنا هونو مغفرت وکړې ماته توفیق دنیک عمل راکړې اوداسې ددوی په اثار مبارکه ؤباندې وسیله وګرځول شي.

## دحضرت نبي کریم ﷺ په وېښتا نو تبرک

حضرت نبي اکرم ﷺ په منا شریفه کې ناتی راوغوښت چې سر یې ورو خره یې نویوواریې دابنی طرف په لاس کې ورکړ هغه یې وخراوه یوصحابي یې راوغوښت وایې داونیسه بیایې چپ طرف هغه نایي ته ونیوهغه یې هم وخراوه بیایې صحابي راوغوښت چې داونیسه چې ټول وېښتان یې واخیستل نوویې ویل چې داوېسه اوپه صحابه کراموباندې یې تقسیم کړه تبرک په وېښتانو دحضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې ځکه دده له ذات سره نښتي وودده وېښتان ؤ.

## دحضرت نبي کریم ﷺ په نوکانو تبرک

حضرت نبي کریم ﷺ په یو وخت کې نو کان پرېکول نو یو صحابي ته وایې چې په صحابه کرامو باندې یې تقسیم کړه. نو ویل کېږي چې داتبرکات ترننه پورې موجو ددي اکثرو ائمه کرامو، مخکینوخلکو به د حضرت نبي کریم ﷺ هغه وېښتان ساتل، نوکان به یې ساتل، دده لباس مبارک چې دده چوپانه قمیص اوټکی څه شی به یې پیداکړل هغه به یې ساتل،تردې پورې چې دحضرت اسماء رضی الله عنها سره د حضرت نبي کریم ﷺ دږیرې مبارکې

وېښته وو اوپه سپینوزرو کې یې ساتلي ؤ اوچې کوم مریض به ورغی هغه وېښته به یې په اوبو کې ورته وواهه بیابه یې هغه اوبه وڅښلې خدا و تدمتعال به شفاء ورکوله په افغانستان کې یې وېښته شته په پاکستان کې شته په بخارا کې شته هغو ائمه کرامو دغه حقیقت پېژاند دهغو په واسطه به یې خداوند کارونه جوړول دده وېښتان دده لباس دده نو کان ترننه پورې خلکوساتلي دي.

نو تبرک اوتوسل په دغو ټولو شیانوباندې جائزه ده که نه وای مخکې علماوائمه کرامو نه کړل نو دخپلو تقصیراتو دمغفرت لپاره سړی باید هره لار ولټوي دهغې بهترینه لار هغه د نقشبندیې طریقې د شجرې مبارکې ویل دي.

## د نقشبندیې مبارکې د شجرې د ویلو فائدې

دادمونږ د طریقې چې کومه شجره ده دخپل شیخ نه تر رسول الله ﷺ پورې داولیاوو د نومونو چې کوم تلاوت ده داچې سړی روزانه یوواري په دغه نیت باندې کوي چې خدای پاکه! دې ددغو اولیاووپه واسطه زما ذکر جاري کړي چې ددغو په بر کت ماته مغفرت وکړي ددغو په بر کت ماته علم راکړي نو هر نیت صحیح چې سړی په کې کوي خدای پاک یې پوره کوي حتی دهند په غټو علماووبه چې کوم غټ مرضونه ولګېدل نو ددغې شجرې نو مونه به یې ورته لیکل خدای پاک به دهغو په سبب خلکو ته شفاء وزکوله

ځکه هغه توسل به دوی. باندې بيرته په واقع کې توسل ددوی په نېکو اعمالوده خدای پاک ته هغه نېک عمل وسيله کول دي

حتی دبعضې مريدانو نفي اثبات نه کيږي مشائخ کرام داطريقه ورته ښيي چې اول دې لطائفې وکړي اوبيادې شجره ووايي په دغه نيت باندې چې خدای پاک دې ددغو داولياوو په بر کت باندې زما نفي اثبات ورسوي نو دهر نيک مقصد لپاره يي چې سړی وګرځوي خدای پاک يې هغه مقصود وربانديې پوره کوي نو داتبرک اوتوسل په ذوات فاضله ووچې يوواري داحاديثو صحيحه ونه معلوم ده نو داځای دشک اواشتباه نه ده دابايد سړی په کامل اخلاص او اعتقاد باندې وکړي خومره چې يې وس رسيږي دشجرې ويل بايد پرې نه ښودل شي داډېر مفيد دی دلطائفو دعاوې بايدوويل شي داهره لطيفه خپل متصرف لري ددغې لطيفې ددعاپه برکت د هغې لطيفې دمتصرف روحانيت حاضريږي خدای پاک هغه لطيفه ورسره جاري کوي دازمونږ دلطيفو چې کومې دعاوې دي دبعضې طريقومستقل سبقونه دي خودا زمونږ د حضراتو مبارکينو مجددينوانداراج ده چې په يوه لطيفه کې درې يا څلورکارونه کېږي نوداچې په غور باندې دلطيفو دعاوې وايي اوشجره وايي اوهغه خدای پاک ته وسيله ګرځوي نومؤثر واقع کېږي ځکه رسول الله ﷺ خپل صحابي ﷺ ته وايي چې: ما وسيله وګرځوه، که وسيله مؤثره نه وای بيابه رسول اللهﷺ ورته ويلي وو چې دوه رکعته لمونځ او دعا وکړه؟ خو رسول اللهﷺ د لمانځه امر هم ورته کوي چې دا يو صالح عمل ده اوداهم ورته ښيي چې د الله تعالیﷺ ثنا اودهغه په

پيغمبرﷺ باندې درود ووايه اوله دې سره سره دا هم ورته وايي چې ما الله تعالىﷻ ته وسيله وګرځوه، الله پاکﷻ به دې مقصود حل کړي. نو کله چې صحابيؓ دغه عمل وکړ نو الله تعالىﷻ يې دواړه سترګې ورته روغې کړې.

نوپه دې کې دې ته اشاره ده چې انسان بايد په دې ټولو شيانو کې کوشش وکړي، عمل دې هم کوي او وسيله دې هم لټوي، او بيا په دغې وسيلې جوړولو کې د مړي او ژوندي د ليرې او نژدې کوم فرق نشته. يو جادوګر وي هغه د شيطان نومونه او ناروا اوراد پخوي، د شيطان د نوم د ډېرو يادولو له امله ورسره د شيطان ملګرتيا پيدا شي، له ډېرو سره په ناروا کارونو کې مرسته هم کوي، اکثره جادو ګومره مؤثر وي چې خلک مرګ ته ورسوي، مېړه او ښځه سره بېل کړي، خپل خپلوان سره جلا کړي، دا ولې؟ څکه چې شيطان ورسره مرسته کوي، نو چې د شيطان د نوم په يادولو د شيطان له هغه سره ملګرتيا پيدا کېږي، نو دالله تعالىﷻ د دوستانو د نومونو په ويلو به له هغوی سره دوستي او ملګرتيا پيدا کېږي.

اسماء الحسنى چې يوڅوک ګومره ډېر وايي نو له الله تعالىﷻسره يې ډېره مينه پيدا کېږي، ګومره چې د رسول اللهﷺ نومونه يادوي نو له هغهﷺ سره يې مينه او محبت پيدا کېږي، همداسې د اولياء الله کرامو نومونه چې يادوي نو له هغوی سره يې مينه او تعلق پيداکېږي، نو لنډه داچې دا دتعلق او ملګرتيا جوړولو يوه لاره ده.

د ( مزارات اولياء ) په نوم يو کتاب ده، دې کتاب د يوه حديث مضمون رانقل کړی چې: د قيامت په ورځ به له يوه انسان سره الله پاک ﷻ حساب وکړي، نيکي او بدي يې سره برابر شي، نو الله تعالیٰ ﷻ ورته وايي چې ورشه او يوه نيکي راپيدا کړه ترڅو دې وبښم، نو دغه شخص ډېر وګرځي نو هغه يوه نيکي پيدا نه کړي، ځکه چې په هغه ورځ هرڅوک محتاج وي، بيا الله تعالیٰ ﷻ ورته د خپل يو ولي نوم واخلي چې زما د هغه فلانکي دوست نوم دې زده و ؟ دی ورته په خواب کې وايي چې: هو ! نو الله تعالیٰ ﷻ به ورته وايي چې: بس يواځې په همدې مې وبښلې .

نو چې سړی لږ فکر وکړي چې په وسيله خدای پاک ﷻ ته سړی نږدې کېږي، نو په حضرت نبي کريم ﷺ چې څوک يو ځل درود شريف ووايي نو الله تعالیٰ ﷻ او ملائکې په هغه سړي لس لس ځله درود وايي. د جُمعې مبارکې په شپه چې يو څوک درود شريف ووايي نو په ځواب کې يې الله تعالیٰ ﷻ او ملائکې په ده باندې اويا ځله درود وايي.

نو په کار ده چې د جُمعې په شپه او بل هر وخت کې په حضرت نبي کريم ﷺ باندې درود ووېل شي، ځکه په مقابل کې به يې الله تعالیٰ ﷻ په مونږ باندې درود نازلوي، ځکه چې الله تعالیٰ ﷻ په دې کار باندې راضي کېږي، دده ﷺ د دوست ثناء دې ادا کړه، ځکه چې رسول الله ﷺ د الله تعالیٰ ﷻ محبوب ده، دده د محبوب ثناء او صفت دې ادا کړ، نو په مقابل کې يې الله تعالیٰ ﷻ دومره ورباندې

خوشاله شو چې د هغه له وجې يې په تا باندې اويا رحمتونه نازل کړل.

په کوم ځای کې چې د خدای تعالیٰ ﷻ نوم اخيستل کېږي په هغه ځای د الله تعالیٰ ﷻ رحمت نازلېږي.

## د نېکو خلکو د نومونو په واسطه په هغه ځای انوار نازلېږي

جُناب حضرت قدوتنا مرحوم انوار المشائخ فضل الدين خليفه صاحب قدس الله تعالیٰ سره به دا واقعه ډېره بيانوله چې: يو ولي په يوه ځای تېرېده نو ويې ليدل چې: انوار ورېږي، نو ده دا ګمان وکړ چې دلته به کوم ژوندی بزرګ ( ولي ) وي، ورته به ورشم او څه به ورڅخه زده کړم، يا به کوم زيارت وي او هلته به دعا وکړم، الله تعالیٰ ﷻ به مې کارونه جوړ کړي. دغه بزرګ وايي : کله چې دغه ځای ته ورغلم نو هلته د غلو يوه ډله ناسته وه، او هغه غلا شوی سامان يې سره په خپل منځ کې وېشه. زه حيران شوم چې دا زما کشف بې ځايه وه که کوم بل څه چل ده ؟ ( خليفه صاحب مبارک به ويل چې : د الله تعالیٰ ﷻ اولياء هوښيار وي په تلوار کوم کار نه کوي) . نو دغه بزرګ له دې غلو څخه پوښتنه وکړه چې: ددغه مال له تقسيم څخه تاسې مخکې په څه مصروف وئ؟ له هغو څخه يوه شخص ورته وويل چې: زمونږ دغه ملګري د حضرت پيران پير صاحب کومه واقعه بيانوله.

نو ګوري ! سره له دې چې دا شخص فاسق دی، غلا يې کړې، خو چې د خدای تعالیٰ ﷻ د کوم دوست واقعه بيانوي نو هلته الله تعالیٰ ﷻ بياهم خپل رحمت نازل کړی دی. نو بيا چې يو سړی مسلمان وي، بيا طالب او نېک عمله شي، مجاهد او صوفي شي اوبيا په دغه بنه سرېتوب کې د الله تعالیٰ ﷻ دوستانو بيان کوي، دهغوی واقعات ذکر کوي، نو په هغه به څومره رحمتونه نازلېږي؟ دا طبعي خبره ده چې په کوم مجلس او وعظ کې د خدای پاک ﷻ د دوستانو نومونه ياد کړل شي نو ډېر اثر پکې وي، ځکه هلته ددوی روحانيت متوجه شي اود هغه سره د الله تعالیٰ ﷻ رحمت نازل شي، اوپه کوم مجلس کې چې د الله تعالیٰ ﷻ رحمت نازل شي نو له هغې سره د انسانانو حالت بدلېږي، بيا يې په ذکر، دعا او نورو اعمالو کې اثر پيدا کېږي.

نو دغه شجرې اود لطائفو دعاګانې هر وخت واياست، مه يې پرېږدئ ! نو مطلب داچې د وسيلې ثبوت شته، په آياتونو او احاديثو باندې ثابته ده، د مړي او ژوندي په باره کې، د عمل په باب کې اود ذواتو په باب کې، نودا ټول ثابت دي، په دې کې بايد سړی اشتباه اختيار نه کړي، بايد په اخلاص سره دې شي ته متوجه وي. د شجرې ويل ددغه توسل له قبيلې څخه دي، په دغه سره انسان بهترين توسل حاصلولای شي، نوپه هيڅ حالت کې بايد پرې نه ښودل شي، همدارنګه د لطائفو په دعاګانو کې مشائخ کرام وسليه کېږي.

## دلطائفو په وخت کې دعاوې

**د اولنې لطيفې دعا** : ( الهی تجلیات صفات افعال خودرا که از لطیفه قلبی حضر محمد مصطفی ﷺ به لطیفه قلبی حضرت آدم علی نبینا وعلیه الصلوٰة والسلام رسانیدی همان فیض به لطیفه قلبی من حقیر هم برسان به واسطه مرشدین طریقتم و بالخصوص به واسطۀ جناب مرشدم .

نو په دې ځای کې وسیله راغله . معنا داچې: خدایه پاکه ستا هغه رڼاګانې چې د رسول اللهﷺ له زړه مبارک څخه د حضرت آدم ؑ زړه مبارک ته دې رسولي دې، نو هغه رڼاګانې زما عاجز زړه ته راورسوي ، خو په واسطه د مرشدینو ددغه طریقت چې هغه په دغه شجره کې څومره اولیاء الله ذکر دي . ( یعنې خصوصاً زما د خپل پیر په واسطه الله پاکه! هغه انوار او تجلیات زما زړه ته راورسوې).

**د دوهمې لطيفې دعا** : ( الهی فیض صفات ذاتی که از لطیفه روحی حضرت محمدﷺمصطفی بلطیفه روحی حضرت نوح وحضرت ابراهیم علی نبینا وعلیهما الصلوٰة وسلم رسانیدی همان فیض بلطیفه روحی من حقیرهم برسان بواسطه مرشدین طریقتم وبالخصوص بواسطه جناب مرشدم)

يعنې هغه د ذاتي صفاتو فيض چې د رسول اللهﷺ له مبارک زړه نه دې د حضرت نوح ﷺ او حضرت ابراهيم ﷺ روح ته دې رسولې دي، خدايه پاکه ! زما عاجز روح ته يې هم راورسوي، په وسيله د اولياوو ددې لارې ، خصوصاً زما د خپل پيرمبارک په وسيله باندې

**د دريمې لطيفې دعا** : ( الهی فيض شيونات ذاتی که از لطيفه سِری حضرت محمد مصطفی ﷺ بلطيفه سِری حضرت موسی عليه الصلوة وسلم رسانيدی همان فيض بلطيفه سِری من حقير هم برسان بواسطه مرشدين طريقتم وبالخصوص بواسطه جناب مرشدم )

معنا داچې: ای خدايه پاکه ! هغه فيض د شيوناتو ستا چې له لطيفهٔ سري د حضرت نبي کريمﷺ څخه دې لطيفهٔ سري د موسیﷺ ته رسولی دی هغه فيض زما عاجز لطيفې ته هم راورسوې ، ددغې لارې د اولياء کرامو په واسطه ، خصوصاً زما دخپل محبوب مرشد په واسطه .

**دڅلورمې لطيفې دعا** : ( الهی فيض صفات سلبی که ازلطيفه خفی حضرت محمد مصطفی ﷺ بلطيفه خفی حضرت عيسی عليه الصلوة وسلم رسانيدی همان فيض بلطيفه خفی من حقير هم برسان بواسطه مرشدين طريقتم وبالخصوص بواسطه جناب مرشدم )

معنا داچې: ای خدايه پاکه ! هغه د خپلو سلبي صفاتو د لطيفهٔ خفي چې د رسول اللهﷺ له لطيفهٔ خفي نه دې حضرت عيسیﷺ ته

رسولی دی، هغه فیض زما خفي لطیفې ته هم ورسوې، د اولیاء کرامو په واسطه، خصوصاً زما دخپل مرشد په واسطه.

**د پنځمې لطیفې دعا** : ( الهی فیض انوار جامع شان العلم لطیفه اخفی حضرت محمد مصطفی ﷺ بلطیفه اخفی من حقیرهم برسان به واسطه مرشدین طریقتم وبالخصوص بواسطه جناب مرشدم )

چې د رسول اللهﷺ تر قدم لاندې ده، الهي هغه فیض د شان العلم د انوارو د ستا هغه چې مدار رسول اللهﷺ ده، هغه فیض انوار جامع شان العلم رسول اللهﷺ لطیفۀ اخفی ، زما اخفی لطیفې ته یې راورسوې، په واسطه د اولیاء کرامو ددغې لارې، خصوصاً په واسطه زما دخپل مرشد.

نو د هرې لطیفې په دعا کې اولیاء ورسره دي، دنقشبندیې طریقې ټول اولیاء کرام عموماً او خپل مرشد خصوصاً په دې دعا کې وسیله کوي. بیا دعا کوي چې: خدایه زما زړه جاري کړې ! ، زما روح جاري کړې !، زما سِر جاري کړې ! ، زما خفي جاري کړې ! ، زما اخفی جاري کړې !.

دا دعاګانې اوسنۍ نه دي، بلکې له ډېر پخوا څخه رانقل شوي دي، په اردو، فارسي اوهمدارنګه په افغانستان کې هم په ډېرو کتابونو کې دا دعاګانې رانقل کړل شوي دي، ځکه چې د فارسي ژبه یو وخت په بخارا، سمرقند اوهندوستان کې ډېره رائجه وه. نو په فارسي ژبه چې څرنګه رانقل کړی شوي دي، هماغسې دي او چا څه تغیر پکې نه دی کړی.

همدارنګه د بیعت (تلقین) الفاظ ټول خلیفه صاحبان په فارسي وايي، ځکه رانقل وو حضراتو مبارکینونه فارسي الفاظ نوتغیير پکې نه راولي ادب کوي نو په هغه الفاظو کې تغییرنه راولي هغه وسیله ورته ګرځوي نوډېر کار چې جوړېږي هغه په دغه باندې چې عمل هم وسیله کړي هغه اشخاص هم وسیله کړي بیاد سړي ددنیا دا خرت ټول کار و نه جوړېږي نوډېر ملګري تر ډېره وخته په و ظیفو با لکل نه پو هیږي پوهېدل شرط نه دي کول شرط دي پو هېږ وکه نه پو هېږو مونږ ته د خدای پاک ﷻ حکم ده چې ذکر کوئ مایادو ئ نو مونږبه يې کوو خودغه يې لارې دي چې لږ محنت و شي په مجلس کې لږ ا حتیا ط و شي په خو را ک کې لږاحتیاط وشي دغه دلطائفو دعاګانې اوشجرې وويل شي نوبیا يې سړی زړ په اثرپوهیږي حضرت مجدد صاحب ته څوک په خط کې شکا یت لیکي چې د و مره وخت مې په طریقت کې تېرشو تر اوسه پورې په هیڅ نه پوهېږم هغه په جواب کې ورته لیکي

چشم بندو گوش بند و لب ببند　　　گر نبینی سرِ حق، بر من بخند

سترګې له حرامونه بندې کړه غوږونه دحرامونه اوږېدلونه بند کړه ژبه له حرامو مجلسو نه بند ه کړ ه که د خدا ی پاک اسرا ر دې ونه لید ونوبه ماپورې وخانده.

مونږ دځه نه پرهېز ګرې؟ بیاشکایت کووچې په وظیفونه پوهېږو

حضرت نورالمشائخ صاحب ته په خط کې عین دغه شکل شکایت لیکلې چې دومره وخت مې په طریقت کې تېرشوتراوسه په هیڅ نه پوهېږم ده مبارک په جواب کې ورته لیکلي ووچې محبه خوراک کم کوه ذکر ډېرکوه دطریقت رنګه مه بدوه مونږ که په ټول شوا روز کې پنځه میلته وظیفه وکړو نوبیا زیات شکایت کووچې وظیفه نه کېږي چې اوقات ضایع نه شي دغه دتوسل لحاظ ورسره وشي تاسې یوه جمعه په پابندي سره وظیفه وکړئ له مجلسو دبازارله تګ اوله غیبتو اودرواغونه اجتناب وکړئ لږ وظیفې ډېرې کړئ دشجرې ددعاولحاظ ورسره وکړئ چې هر ملګری دته په یوه جمعه کې په اثرېې پوه نه شوبیا یقیني ده چې نقصان په مونږ کې موجود ده.

په دې لارې کې نقصان نشته چې یوواري دې لارې ته سرې معتقد شونوبیا خدای پاکﷻ دغسې څوک نه پرېږدي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

# (۲۲) مجلس

## په عباداتو کې دحضوربرابرېدلواسباب

هر عبادت چې په حضور باندې وي خدای پاک ته ډېرمقبول ده دعاده لمونځ ده حج ده جهاد ده هر عبادت ده چې په هغه کې خشوع اوحضور وي خدای پاک ته ډېر پسند یده مقبول ده که حضورنه ؤيکې برابرېه هغه عبادت خاص اثرنه مرتب کيږي.

**دحضوردبرابرولوطريقه:**

کتابونه ليکي دانسان حضورچې نه برابريږي دده خيال اوذهن کې سوچونه اوفکرونه ډېرورځي ددغه لپاره دوه عامله دي:

**دحضورنه برابريدلو اول عامل :**

کله دظاهر نه دباندې د سړي زړه ته څه شی تېرېږي يايې په زړه يوشي ځای نيولی وي دبهرون له طرف نه چې دسړي زړه ته څه تېرېږي هغه اکثره يادلارې دنظرنه وي يادلارې دغوږونه وي چې کوم شی ډېر وينی د هغو ليدلو له وجې به د سړي هغه شی سره تعلق پيداکيږي بياپه لمانځه کې هم هغه دده دذهن نه نه وزي يا

چې کوم شی اوري د اورېدلو په سبب د سرې ذهن عقل ته هغه شی ور تېرېږي په لمانځه کې يې حضور نه برابرېږي ددغې وجې نه کنټرول دستر ګو او غوږو پکارده چې دا کنټرول شی هلته ذهن ته به غلط سو چونه نه ورلېږي حضرت عبد الله بن عمر ﷺ به چې په کوم ځای کې لمونځ کاوه نو په هغه ځای کې به چې قرآن کريم توره يا يو ليکلی شی اېښی و په داسې ځای کې به يې لمونځ نه کاوه چې قرآن کريم توره او هغه ليکلی شی به يې نه وه لرې کړی ددغې وجې نه فقهي مسئله هم داده چې دجومات نقش کول که په شخصي خپلو رو پيو باندې جوړ کړي ګچ او چو نه ور کول جائز دی خو ليکن دا خبره پکې شرط ده چې داسې نقشو نه به پکې نه وي چې حضور خرابوي چې هغه دقبلې په طرف باندې دقبلې په طرف چې نقشونه وي نو ستر ګې په هغو باندې لګيږي هغه دزړه حضور خرابوي ځکه ستر ګې هلته مشغو له شي حضرت رسول ﷺپه خطبه باندې لګيا و دسرو زروګوته يې په لاس ده قبل التحريم چې تحريم دسرو زرو لا نه و راغلی دخطبې په ما بين کې يې دا ګوته وشړله او وې غور خوله وايي چې زما حضور يې خراب کړ کله زه ددې طرف ته ګورم او کله زه ستاسې طرف ته ګورم نو ددغې وجې نه د لمانځه او بل عبادت په وخت کې دستر ګو کنټرول پکارده چې سړی ستر ګې کنټرول کړي نو دهغه غلط سو چونه ډېر کنټرول کيږي.

دمشا يخو کرامو اکثره چيله خانې داسې وې چې يواځې به يې ځان ته دومره ځای برابراوه چې هلته به پکې د سجدې ځای و، د دېوال به بېخ ته به نژدې درېده، ځکه د فقهې مسئله هم داده چې

ترخو د سړي سترګې په کنټرول کې وي، له دې وجې نه په داسې ځای کې عبادت کول چې هلته آواز او سرود نه اوري، هلته دنیاوي مجلسونه نه وي، نوپه داسې ځای کې دې عبادت کوي، اوکه دغه شیان وي، نوبیا د زړه حضور نه برابرېږي، سروز خو په خپل ځای پرېږده بلکې په جومات کې به د قرآن کریم تلاوت هم په زوره نه کوي، ځکه چې لمونځ کوونکي ته تاوان رسیږي. د خارجي اسبابو کنټرول په کار ده لکه سترګې، غوږونه ځکه چې ددې له امله د انسان حضور په عبادت کې خرابیږي.

له دې وجې نه مشائخ کرام( رحمهم الله) د ذکر په آدابو کې دا لازمي کړې چې کله د ذِکر په حلقه کې کېناستې نو سترګې به پټوي ، ځکه په دې سره حضور ښه برابرېږي، غوږونه یواځې تلاوت او ذکر ته متوجه کړه نو حضور به دې په خپله برابر شي.

**دحضور نه برابریدلو دوهم عامل:**

کله دیو چا خیالات خراب او بې ځایه وي،نو حضوریې نه برابرېږي. دا ځکه چې له دې نه مخکې د انسان په زړه کې یو بل شي ځای نیولی وي، نو له هرڅه مخکې د هغه لیرې کول په کاز دي، مخکې له دې چې یوڅوک په لمانځه شروع وکړي نو اول دې هغه څه له زړه ځخه وباسي چې دده حضور وربانديې خرابیږي، دا خبره په ذهن کې راولي چې زه د خدای تعالی ﷻ حضور ته دریږم، له رب کریم ﷻ سره به خبرې کوم، مناجات به ورسره کوم، نو ماته هم په کار ده چې له نور هرڅه نه تعلقات قطع کړم، که له دې سره سره بیا هم دا سوچ نه

لیرې کېده نو بیا یې د لرې کولو طریقه داده چې کله په لمانځه کې
قرائت شروع کړي نو د قرائت الفاظو او معانیو ته دې پام کوي، د
هغه په معنا کې دې سوچ کوي، که په خپله قرآن کریم وایي او یایې
له امام څخه اوري نو معنا ته دې پام کوي، کله چې یې د قرآن کریم
معنا ته فکر شو نو له زړه څخه یې هغه بېکاره سوچ په خپله وځي.
خو که بیا هم سوچ نه بدلېده نو بیا دې دهغه شي د لیرې کولو له
پاره بنیادي لاره پیدا کړي. لکه حضرت رسول الله ﷺ ته حضرت ابی
جهیم رضی الله عنه یوه شړې راولېږله، حضرت نبي کریم ﷺ هم لمونځ پکې
وکړ، خو کله چې یې لمونځ وکړ نو فی الحال یې دغه شړې وروسته
او بېرته یې ورته ولېږله او ورته یې وویل چې د ابی جهیم رضی الله عنه هغه
ساده شړې ماته راوړئ اودا بېرته هغه ته یوسئ ځکه چې په دې
شړې کې نقشونه دي، زما حضور یې خراب کړ.

همدارنګه حضرت ابوطلحه رضی الله عنه په باغ کې لمونځ کوي، په ونو کې
مرغان ګرځي ، دی دهغو طرف ته متوجه شو ، حضور یې خراب
شو، نو له لمانځه نه وروسته حضرت نبي کریم ﷺ ته وایي چې: دا
باغ مې ددې له وجې صدقه کړ چې په لمانځه کې یې زما حضور
راخراب کړ.

دحضرت عثمان ذی النورین رضی الله عنه د خلافت په وخت کې ده ته یو سړی
راغی، نو حضرت عثمان رضی الله عنه ته وایي چې: د خُرما د یوې ونې لاندې
مې لمونځ کاوه او خُرما ته مې پام شو او ډېر خوند یې راکړ، تول
سوچ مې په هغه وُنه کې بند شو، ددې سوچ له وجې زما هغه راز او
نیاز چې له خدای پاک ﷻ سره جاري و هغه کمزوری شو ، نو اوس زه

هم دغه باغ د خدای پاک ﷻ په لاره کې صدقه کوم، حضرت عثمان﷛ هغه باغ بیا په پنځوس زره دیناره باندې خرڅ کړ.

نو هر عبادت چې یو څوک کوي نو خامخا به حضور برابروي، د حضور د برابرولو دا علاج او طریقه ده چې هغه اسباب چې دهغې له وجې انسان ته سوچونه پیداکېږي نو که هغه اسباب له خارج څخه وي دهغو دفاع دې وکړي مثلاً د سترګو، غوږونو له طرفه او که د ذهن له طرفه وي یا د زړه له طرفه وي نو دهغه محبت دې له زړه څخه وباسي.

اول باید حضور برابر کړی شي چې زه د خدای پاک ﷻ سره خبرې کوم، دهغه ﷻ په حضور کې ولاړ یم، نو که په دې سره یې اصلاح نه کېدله نو بیا دقرآن کریم معانیو ته متوجې شي، څکه یا به د رحمت آیاتونه وي یا به دعذاب وي، یا به د عبرت واقعات وي، یا به احکام وي، نو کله چې ورته متوجه شي نو په دې سره له ذهن څخه هغه ټول وسواسونه له منځه ځي اوکه په دې سره هم کار نه کېده نو په زړه کې چې یې له کوم شي سره مینه ده هغه دې له زړه څخه وباسي نو بیابه یې خامخا د الله تعالی ﷻ په وړاندې حضور برابرېږي.

**په عبادت کې د حُضور برابرېدلو لارې:**

د لمانځه په هر رکن او شرط کې د حضور د برابرېدو لارې چارې دي. یو څو لنډ مثالونه به یې وړاندې کړو:

اول: کله چې یوڅوک د آذان غږ واوري نو په دې سره باید په ذهن کې داخبره راوګرځوي چې دا آواز څو ما لمانځه ته بولي، یوه ورځ به د حضرت اسرافیل د شپېلۍ په واسطه داسې آواز کېږي چې ما به د حشر میدان ته وربولي، د خدای حضور ته به مې غواړي. نو چې له خان سره یې دافیصله وکړه چې په دې آذان کې د خدای تعالی له طرفه اعلان ده مونږ مجبور یو چې اجابت یې وکړو، ورځو به، هغه د قیامت اعلان چې کېږي هلته به هم ورځو، نو اوس که په دغه آذان سره دده په طبیعت کې خوشالي پیدا شوه چې زه شُکر دی د دین په لاره روان یم، نودا خوشالي دده له پاره بشارت دی چې په هغه وخت کې به هم الله تعالی په ده باندې داسې خوشالي راولي. لکه د زنکدن په وخت کې به ده ته ملائکې زیرې ورکوي چې له آینده واقعاتو ته مه وېرېږه او نه په پاتې شوي اهل اوعیال خفه کېږه ستاسې د هرڅه سرپرستي به مونږ کوو. او بیا چې کله له قبر څخه راپورته شي هلته به هم ملائکې ورته زیري ورکوي.

دوهم: که یوڅوک لمونځ کوي نو د لمانځه له پاره شرط داده چې ځای به پاک وي، جامه به پاکه وي، بدن به یې پاک وي، اوس نو باید سوچ وکړي چې په کوم ځای درېږم هغه باید پاک وي، زما جامې هم باید پاکې وي، بدن مې هم باید پاک وي، نو اصلِ شی خو زړه ده هغه خو باید له دغو ټولو شیانو نه مخکې له هرڅه نه پاک وي. مثلاً له شرک نه، له سُمعت او ریا کاري څخه به یې پاکوم اوپه زړه کې به یواځې له الله تعالی سره تعلق جوړوم چې : ای

خدایه پاکه ! بل مې هېڅ نه دي په کار، د هیڅا له پاره دا کار او عبادت نه کوم، یواځې یې ستا د رضا او خوشالتیا له پاره کوم.

په لمانځه کې د عورت پټول هم یو شرط دی، په دې باره کې سړی باید دا سوچ وکړي چې لکه څرنګه چې په دې جامه زما عورت اود بدن نور عیبونه پټ دي، په دې جامه کې زما عورت دخلکو له سترګو څخه پټ دی. او له الله تعالیٰ ﷻ څخه نه په جامه، نه په توره شپه اونه هم په کوم بل ځای کې پټېدلی شم، که زه دهغه له ګناهونو او نافرمانیو څخه ځان پټوم نو دهغې له پاره پرده یواځې او یواځې توبه ده. هغه ندامت ده، هغه حیا ده، او هغه به الهي خوف وي. نو چې له چا سره دا سوچ پیدا شو چې په دغه جامه زما عیبونه له خلکو څخه پټ شو، خدای پاک ﷻ زه عزتمن کړم، نو باید چې زما عیبونه هم له خدای پاک ﷻ څخه پټ وي، اود الله تعالیٰ ﷻ نه د عیبونو یواځینی لاره حیا ده، وېره ده، او همدارنګه په تېرو بدو عملونو ندامت او استغفار ده او له توبې اېستلو سره انسان بېرته له ګناهونو څخه پاک شي، څکه حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي: ( التائبُ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لا ذَنْبَ لَهُ ) نو ټول عیبونه په پښېمانتیا سره ، په توبه سره، په حیا سره پټ شول.

بل شرط په لمانځه کې ( استقبال القبلة ) دی یعنې قبلې ته مخامخ درېدل. دلته به لمونځ کوونکی له ځان سره دا سوچ کوي چې: ظاهره بدن مې د قبلې په لوري ده، نو زړه به مې د قبلې د څښتن ( الله تعالیٰ ﷻ ) په لوري وي. لکه څرنګه چې انسان په دې عقیده دی چې که مې مخ له قبلې نه بل لوري ته وي نو په دې لمانځه کې هېڅ

ته راغي نو خان به خجالت ګنې، خان به په دار کې ګنې، چې هغه مالک به له ماسره اوس څه کوي نو حیابه ورته دربړي چې ما دده ﷻ دخومره نعمتونو ناشکري کړې ده ؟او ده ﷻ له ماسره څومره ښه کړي دي ؟ پیدا یې کړم، خوراک ښبناک راکوي، لباس اوجامه راکوي، دده ﷻ په ملک کې اوسېږم ، دده نفقه خورم، او بیا له دې تولو سره سره دده ﷻ له اوامرو څخه تښتم او په بله خوا منډې وهم.

نو کله چې له یو مسلمان سره د عبادت کولو په وخت کې دغه فکر ملګری شي نو بیا به یې خامخا په عبادت کې حضور برابرېږي اوپه دغه نېک عمل به الله تعالیٰ ﷻ ورته اجر هم ورکوي او دده عبادت به دنورو خلکو له عبادت سره فرق هم لري.

حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي: تاسې زما په صحابهٔ کرامو ﷺ پسې ستغې سپورې او بد رد مه وایئ؛ که تاسې د اُحُد د غره په اندازه صدقه وکړئ زما د صحابهٔ کرامو ﷺ د یو پاو یا نیم پاو له صدقې سره په اجر کې نه برابرېږي، دا ځکه چې دهغوی مبارکانو صدقې او خیراتونه په خپلو شرائطو برابر او خاص د خدای تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره وو.

د قرآن کریم د آیاتونو د شان نزول په باره کې بار بار دا خبره راغي چې حضرت نبي کریم ﷺ ته به صحابي راغی چې فلانکی صغیره ګناه راڅخه شوېده اوپه هغه ګناه به یې پښېمانتیا او عُجز ښکاره کاوه، مغفرت به یې غوښته اودا به یې ویل چې: زه تښتېدلی وم، د خدای پاک ﷻ ناشکري مې کړې ده ، زر ماته سزا راکړئ، هسې نه

چې دغه سزا مې د آخرت ورځې ته پاتې شي، نو ددې له وجې نه چې په صحابهٔ کرامو﷡ کې په دې اندازه للهیت او خشیت من الله وو نوځکه خو الله تعالیٰ﷯ ورته دومره لوړې درجې هم ورکړې دي.

په کتابونو کې راغي چې: ( حسنات الابرار سیئات المقربین ) که له انبیاء کرامو علیهم السلام څخه خلاف اولی کار شوی وي په هغې سره هم الله تعالیٰ﷯ دوی ته تنبیه ورکړې وي، سره له دې چې دواړه کارونه به روا وو خو دا چې دوی به هغه بهتر پرېښی و بیا به هم ورته عتاب متوجه وو.

د مکروهاتو په صادرېدلو اولیاء الله وو څومره ډېر ژړلي دي؟ په اجتهادي سهوو باندې انبیاء کرامو علیهم السلام څومره ډېرې ژړاوې کړې دي ؟

نو لنډه دا چې کله په عبادت کې للهیت راشي نو مسلمان به اهل الله ګرځي او کله چې الله تعالیٰ﷯ یو څوک د خپل خان لور ته راوبولي، کومه مرتبه او عزت چې هغه﷯ ورته ورکړي بیا یې نه بل څوک ورکولای شي اونه یې بل څوک ترې اخیستلای شي. څومره چې یو څوک خدای تعالیٰ﷯ ته ورنژدې کېږي هغومره به دی ورڅخه ډارېږي. الله تعالیٰ﷯ په قرآن کریم کې فرمایي: ﴿ إِنَّمَا يَخْشَى ٱللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ ٱلْعُلَمَٰٓؤُا۟ ﴾ تاسې نظر وکړئ څومره چې کومه دله الله تعالیٰ﷯ ته ورنژدې ده په هماغه اندازه یې له الله تعالیٰ﷯ څخه وېره هم زیاته وي. په اول نمبر کې پیغمبران علیهم السلام،

بيا صحابهٔ کرام ، بيا تابعين کرام او اولياء عظام ، نو دا بزرګان چې څومره له الله تعالیٰ څخه داريږي نو عام خلک له الله تعالیٰ څخه دومره نه داريږي، هغوی بزرګان څکه زيات ويريږي چې هغوی ته د الله تعالیٰ معرفت حاصل دی او خان ورته ناقص او خجالت ښکاري.

## د حضرت علي  د لمانځه په وخت کې څه حال و ؟

حضرت علي به چې کله اودس کاوه نو رنګ به يې تک زېړ شو او ټول بدن به يې رېږدېده ، چا ورڅخه پوښتنه وکړه چې: يا اميرالمؤمنين ! ته چې کله اودس کوې نو ستاسې کيفيت بدل شي، په رنګ کې مو تغير راشي او ټول بدن مو هم رېږدي. ددې څه وجه ده ؟ نو حضرت علي ورته په خواب کې وويل چې: ته په دې نه يې خبر چې کله زه اودس وکړم نو زه د چا په حضور کې درېږم ؟ زه له چاسره غږېږم ؟

نو که څوک له ځان سره فکر وکړي چې زه په لمانځه کې چاته ولاړ يم؟ زه تلاوت د چا په حضور کې کوم ؟ زه د الله تعالیٰ په حضور کې تلاوت کوم او هغه راته غوږ نيولی دی، هغه ماته متوجه دی او زما امتحان اخلي ، زه دده کلام ورته تېروم او دهغه راته پام دی، نو په دې سره بيا انسان داسې مقام ته رسيږي چې داسې احساسوي لکه الله تعالیٰ چې په خپله تلاوت کوي او دوی ورته غوږ نيولی

وي، اګرکه دی دغه تلاوت له بل کوم انسان څخه اوري خو دی به داسې احساسوي لکه چې له الله تعالیٰ ﷻ څخه يې چې اوري.

الله تعالیٰ ﷻ خو مونږ ته فرمايي چې: ﴿ فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ ﴾ (لمونځونه وکړئ) ﴿ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ ﴾ (زکاتونه ورکړئ) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا ﴾ (الله ډېر ډېر يادوئ) په دې اوامرو کې به البته فائده زمونږ له پاره وي څکه يې الله تعالیٰ ﷻ بار بار راته د کولو امر کوي.

اوکه یو چاته الله تعالیٰ ﷻ مُشاهده نصیب کړي بيا يې داسې مقام په برخه شي لکه خدای تعالیٰ ﷻ چې په خپلو سترګو ويني. لکه په حديث شریف کې راځي: (ان تعبدالله کانك تراه فان لم تکن تراه فانه يراک) معنا داچې د خدای تعالیٰ ﷻ داسې عبادت کوه ګواکې چې ته يې وينې، اګر که ته يې نه وينې خو هغه دې ويني.

کوم خلک چې الله تعالیٰ ﷻ ته ډېر نږدې کېږي دهغوی له پاره له ټولو نه مخکې احتیاط شرط ده، ځان به له مکروهاتو، مشتبهاتو نه ساتي، له غلطو مجلسونو، اشتباهي خوراکونو، له غلط محیط او ماحول نه به ځان ساتي اوهمداراز به له غلط ملګري نه هم ځان ساتي. څکه چې د خدای تعالیٰ ﷻ له نږدې دوستانو څخه که معمولي سهوه هم کېږي بيا په هغه عمل هم تنبېه ورکول کېږي، بيا يې الله تعالیٰ ﷻ له تکلیفونو سره مخامخ کوي، څکه لکه څرنګه چې برخه زياته او انعام يې ډېر دی بيا يې سزا هم دغسې زياته ده.

طالب، عالم او صوفي به د عوامو په نسبت زيات احتياط کوي، ځکه دی تر نورو انسانانو الله تعالیﷻ ته ورنژدې دی، نو چې بدله زياته غواړي نو اطاعت به يې هم زيات وي. د اولياء کرامو حتی الوسع دا حکم دی چې په عمل کې به عزيمت کوي، په رخصت به عمل نه کوي، سره له دې چې رخصت په شريعت کې جائز عمل دی، خو بيا به هم په عزيمت عمل کوي ځکه چې ددوی مقام اوچت دی.

نو غرض داده چې د عبادت په وخت کې بايد خپل حضور برابر کړو، بيا به زمونږ دغه لږ کېناستل، دوه رکعته نفل، لږ تلاوت دا به د ېر غټ اجر لري.

يو سړی يوه روپۍ صدقه کړي نو الله تعالیﷻ ورته يو په لس بدله ورکوي، بل يوه روپۍ صدقه کړي هغه ته يو په اووه سوه بدله ورکوي، بل يوه روپۍ صدقه کړي يو په اووه لکه بدله ورکوي، بل يوه روپۍ صدقه کړي يو په کروړونو الله تعالی بدله ورکوي. اوس صدقه يوه روپۍ ده خو بدله او اجر يې مختلف دی، په ثوابونو کې يې فرق دی. دا ځکه چې د نيت د حضور په برابرېدلو کې فرق دی، څومره چې اخلاص زياتيږي هغومره انعام هم ورسره زياتيږي، نو بيا ددغو خلکو سزا هم دغسې ده، عذاب يې هم دغسې زياتيږي.

په يوه روايت کې راځي چې: که يو عام سړی گناه وکړي نو يو په يو به ورڅخه بدله اخيستل کېږي، خو که دغه گناه يو عالم وکړي يو په اويا به يې سزا وي، ځکه ددوی مقام جگ دی، ددوی انعامات

زیات دي، نو چې انعامات یې زیات دي بیا به انتقام ته هم متوجه کېږي.

اوس که مونږ متوجه شو چې په لمانځه ، تلاوت او نورو عبادتونو کې مو حضور ولې نه برابرېږي ؟ وجه یې داده چې: د اسبابو لحاظ مو نه دی کړی، دا د حضور د برابرېدلو اسباب څه شی دي ؟ نو کله چې د حضور اسباب وکتل شي او هغه علاج وکړل شي نو بیا امید شته چې الله تعالیٰ ﷻ به کار وکړي، لکه څرنګه چې ظاهري بدن مریض شي دهغه له پاره الله تعالیٰ ﷻ معالجه مقرر کړې ده ، ډاکټران وي، مریض بار بار ور روان وي چې کېدای شي له دغې نسخې سره روغ شم نو چې کوشش وکړي خدای پاک ورته شفا ورکړي.

نو ددغو روحاني مرضونو له پاره هم که یو څوک کوشش وکړي دغه اسباب ولټوي علاج یې وکړي بیا خدای پاک مهربانه ده چې کارونه یې ورته جوړ کړي.

وآخر دعوانا ان الحمدلله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

# (۲۳) مجلس

## د روژې د میاشتې اهمیت

د روژې په میاشت کې له ټولو نه مخکې مسلمان باید دې ته متوجه وي چې کوم فضیلت خدای پاک ﷻ په دې میاشت اوددې میاشتې په وختونو کې ایښې دی هغه فضیلت د نور کال په ټولو میاشتو او وختونو کې نشته، د خدای تعالی ﷻ رضا او زیات ثوابونه چې کوم په دې میاشت کې لاس ته راځي په نورو کې یې نه شي ترلاسه کولای.

په یوه حدیث شریف کې له حضرت نبي کریم ﷺ څخه روایت شوی دی چې ددې میاشتې بهتري په نورو میاشتو داسې ده لکه د خدای تعالی ﷻ بهتري په نورو مخلوقاتو. اود خدای تعالی ﷻ او مخلوق ترمنځ انسان څه نسبت نه شي کولای چې دخدای پاک ﷻ په مخلوق څومره بهتري ده ؟ نو همداسې ددغې میاشتې بهتري په نورو میاشتو باندې ثابته ده.

د هر وخت له پاره دا قانون ده چې : کوم وخت محترم وي، کوم ځای محترم وي او کوم خلک چې خدای تعالی ﷻ ته محترم وي نو دهغه وخت، دهغو خلکو اود هغه ځای فائده اوګټه به هم هغو خلکو ته

رسیږي ځوک یې چې د هر احترام کوي. دغه د روژې مبارکه میاشت ځومره محبوبه او محترم میاشت ده، خو که ځوک ددغې میاشتې عزت او قدر ونه کړي نو دغومره ددغه شخص له پاره زجر او سزا هم زیاته ده.

په تفاسیرو کې لیکل شوي دي چې: که یو ځوک په حرم شریف کې یواځې د ظلم اراده وکړي او ظلم یې لا نه وي کړی نو الله تعالیٰ ﷻ فرمايي چې زه به ددغې ارادې سزا هم ورکوم. نو مفسرین کرام فرمايي چې: که په عامو ځایونو کې یو ځوک د کومې ګناه اراده وکړي نو یواځې په اراده کولو سره الله تعالیٰ ﷻ ورته سزا نه ورکوي ترڅو یې چې هغه بد عمل نه وي کړی، خو په حرم شریف کې یواځې د ارادې په کولو سره هم سزا ورکوي، ځکه چې حرم شریف عندالله محترم دی. نو چې ځای محترم شو احترام یې هم دغومره ضروري دی.

نو روژه په ټولو میاشتو کې بهتره میاشت ده، ځکه ددې میاشتې نسبت الله تعالیٰ ﷻ خپل ذات طرف ته کړی دی، خو ددې بهترې ثواب به مونږ ته هلته رارسیږي چې مونږ ددې میاشتې حرمت وپېژنو، احترام یې وکړو او احترام یې دادی چې په دې میاشت کې عبادت زیات وکړو او د عبادت معیار ته زیاته پاملرنه او توجه وکړو. لکه څرنګه چې د درود شریف په باب کې راځي چې که یو مسلمان په حضرت نبي کریم ﷺ باندې درود وایي نو له ځان سره داسې تصور کوي چې زما دغه درود حضرت نبي کریم ﷺ ته د الله تعالیٰ ﷻ له طرفه د ملائکو په ذریعه رسیږي او له دې سره دا تصور

هم وکړي چې که زه يو ځل درود وايم نو په مقابل کې به يې الله تعالیٰ ﷻ په ما باندې لس ځله درود وايي. او د جُمعې په شپه او ورځ د يوه درود په مقابل کې الله تعالیٰ ﷻ او ملائکې په انسان باندې اويا ځله درود وايي. او دا تصور چې څوک په هره لطيفه وايي نو په هغو لطائفو ددغه درود اثر پيدا کېږي. بې له وظيفو نه درود ويل او له وظيفو سره دورد ويل په دې کې هم فرق ده.

نو کله چې په داسې حضور سره يو څوک عبادت کوي، نو له عبادت سره يې مينه او شوق زياتيږي، له عمل سره يې اخلاص او محبت زياتيږي، ددغه عمل قدر او ارزښت ورته معلوميږي ، نو څومره چې دده په ذهن کې دهغه عمل ارزښت زياتيږي همدومره به الله تعالیٰ ﷻ ددغه شخص په دې عمل باندې اثرات مرتب کوي. ځکه چې له عمل سره اخلاص ملګری شو .

لنډه داچې که له ځان سره فکر وکړو چې دا هغه مبارکه مياشت ده چې په ټولو مياشتو کې الله تعالیٰ ﷻ د ځان له پاره منتخب کړې ده. په دې مياشت کې د نفلي عبادت ثواب د فرضي عبادت له ثواب سره برابر دی. او يو فرض د اوياوو فرضونو ثواب لري، د مسلمان له پاره د دوزخ له اوره د خلاصون يوه وسيله اوذريعه ګرځي. نو که طالب ده، که ملا ده، که حاجي وي ، که صوفي وي، که نر وي او که ښځه بايد تر نورو وختونو په دې مياشت کې اوددې مياشتې په عبادت کې ډېر اخلاص وکړي. له خپلې وسې سره خيراتونه او صدقې وکړي . په دې خبره پوه شئ چې په دې مياشت کې څومره خير او ثواب لاس ته راځي بل وخت بيا نه راځي. تردې پورې چې په

دې مياشت کې دې له مزدورانو سره هم له نرمي او شفقت څخه کار اخلي ، کم کار دې ورباندې کوي، له خپل نوکر سره دې هم له مهرباني کار واخلي. څکه هغوی هم د الله تعالیٰ ﷻ عبادت کولو ته ضرورت لري. اودا خو معلومه نه ده چې د خدای تعالیٰ ﷻ دوستان به د چا په جامه کې وي، د طالبانو په جامه کې به وي او که د ملنګانو په جامه کې ؟ نو اصلِ مطلب داچې له هر مسلمان سره به په دې مياشت کې نرمي کوي. څکه چې د الله تعالیٰ ﷻ د دوستانو معلومات نه کېږي، کله به د طالب په جامه کې وي، کله به د ملنګانو په جامه کې وي. که يو څوک د ملنګ يا ليوني په جامه کې وي خلکو ته يې ارزښت نه معلومېږي خو هغه په حقيقت کې د الله تعالیٰ ﷻ په نزد ډېر معتبر انسان وي.

## حضرت ضياء المشائخ قدس الله سره په حضرت مجدد صاحب قدس الله سره څومره ګران و؟

جُناب حضرت ضياء المشائخ (قدس الله سره) واقعه بيانوله چې: يو وخت زه او زما يو ملګرى له کور څخه د تفريح په نيت راووتلو ، زمونږ په علاقه ( شور بازار ) کې يو مجذوب د بابا خال محمد رحمة الله عليه په نامه اوسېده، جامې به يې نه اغوستې، لوڅ به ګرځېده، ماته خپل ملګري وويل چې: دې مجذوب ته ګوره چې د شريعت خلاف عمل کوي، د عورت پټول فرض دي او دی لوڅ ليږ

ګرځي، ما هم د ملګري خبره تائيد کړه چې رښتيا وايي دا خو د شريعت خلاف عمل دی.

نو حضرت صاحب مبارک وايي چې: د شپې مې خوب ليده چې د جناب حضرت مجدد صاحب قدس سره زيارت ته ورغلم او له هغه سره دهغه چپ طرف ته دده مبارک دوه زامن شاه محمد سعيد او خواجه محمد معصوم قدس سرهما ناست دي، زه ورغلم اود حضرت مجدد صاحب ښي طرف ته کېناستم او ډېره مينه يې راسره وکړه، په همدې وخت کې مې ليدل چې يو سړی د افغانستان د جنرالانو په ډېر ښائسته لباس کې راغی، ما چې په خير خير ورته وکتل نو داسړی (بابا خال محمد) و، جناب مجدد صاحب قدس سره ته يې سلام واچاوه ، له احوال او پوښتنې څخه وروسته حضرت مجدد صاحب ورته وويل چې: خيريت خو به وي ؟ څنګه راغلی يې ؟ نو (بابا خال محمد) ورته وويل چې: خيريت دی، نور هيڅ خبره نشته، زما طرف ته يې اشاره وکړه چې ستا دغه لمسيان مې بې ځايه خوروي، نو حضرت مجدد صاحب زه په غېږ کې ورځملولم او زما غوږ يې تاو کړ، دومره يې تاو کړ چې غوږ مې درد وکړ او چې کله په همدغه وخت کې د غوږ د درد له وجې راويښ شوم نو غوږ مې ګرم هم و او درد يې هم کاوه، په همدغه وخت کې جُناب والد صاحب حضرت نورالمشائخ مبارک هم راباندې غږ وکړ چې: ابراهيم جانه ! ما ورته وويل : بلې قربان ! نو والد صاحب راته په خواب کې وويل چې: بيا څوک بې ځايه مه خوروه!.

دلته دا خبره واضح کول هم ضروري دي چې: د حضرت نور المشائخ قدس سره د تهجد لمانځه د اوداسه له پاره اوبه حضرت ضياء المشائخ قدس سره تيارولې ، هغه مبارک به چې غږ وکړ چې ( ابراهيم جان ) نو ده به سمدستي ورته اوبه وروړې . نو حضرت صاحب مبارک وايي چې کله ما دغه خوب ليده نو دا د مشر حضرت صاحب د تهجد د لمانځه وخت و، نو ما د خپل معمول له مخې دا فکر کاوه چې دی مبارک به اوبه غواړي ، خو خبره بله وه. فاعتبروا يا اولی الابصار. له دې خوب څخه د حضرت ضياء المشائخ صاحب قدس سره د ولايت او ګرانښت درجه په حضرت مجدد صاحب قدس سره معلوميږي.

نو راځو اصلِ خبرې ته چې: يو څوک به د خلکو په نظر ليوني وي، لوځ لغړ به وي خو د الله تعالیٰ ﷻ په نزد يې درجه او عزت څومره زيات دی.

## له عاجزو خلکو سره پام کوئ !

حضرت انوارالمشائخ ( دارغندی مرحوم خليفه صاحب ) قصه کوله چې: مونږ په شيلګر کې اوسېدو ، يو غريب طالب و ، طالبانو به ټوکې ورياندې کولې . بله ورځ استاد راغی او ويې ويل چې: ما حضرت نبي کريم ﷺ په خوب وليده او راته يې ويل چې: دا زما طالب ده ګوره ! چې خفه يې نه کړې. کله کله به طالبانو کې يو

عاجز مسکین طالب وي، نو ډېر احتیاط ورسره په کار دی. کله په عامو مسلمانانو کې یو فقیر سړی وي، له ده سره هم باید احتیاط وشي.

نو خبره مو د روژې مبارکې کوله. چې په روژه کې باید له نورو وختونو سړی ډېر زیات اخلاص او کوشش وکړي، ډېر احتیاط وکړي، دا معلومه نه ده چې په راروانه روژه کې به څوک وي او څوک به نه وي؟ډېر داسې ملګري و چې تېر کال له مونږ سره په ترجمه کې موجود وو، خو اوس هغه دی هغوی شهیدان شوي، نو را روان کال ته بیا خدای عالم ده چې په روژه کې به څه پېښیږي؟ دا د ذکر او درس حلقه به بیا زمونږ په لاس کې وي او کنه؟ د روژې دغه فضائل به مونږ بیانولای شو او کنه؟ ورځ نه، بلکې یو ساعت او لحظه چې هم یو چاته فراغت پیدا کېږي باید سړی الله تعالیﷻ ته متوجه شي. حضرت نبي کریمﷺ فرمایي چې: فراغت غنیمت وګڼه.؟

اوس خو یې راته قدر نه معلومیږي، د ژوند قیمت راته نه معلومیږي خو که خدای مه کړه په ابتلاء کې واقع شو بیا ددې نعمت قدر راته معلومیږي.

زمونږ ډېر داسې مشائخ کرام اوس هم شته چې په داسې ځایونو کې اوسیږي چې هلته ورته د ختم کولو له پاره څوک نه پیدا کېږي، په خوشالي او اطمینان سره په یوځای کې مجلس او مجمع نه شي جوړولای. نو ددې میاشتې د هر ساعت او هرې دقیقې قدر وکړئ:

چې راځخه ضائع نه شي، دې ته باید متوجه شو چې زه کوم نیک عمل وکړم ، زه باید صلوة تسبیح وکړم چې په دې سره الله تعالیٰ ﷻ لس قسمه ګناهونه معافوي، هره ورځ یې باید وکړم، که هره ورځ نه وي باید په جُمعه کې خو یې یوځل وکړم.

په حدیث شریف کې راځي حضرت نبي کریم ﷺ حضرت عباس ﷺ ته فرمایي چې: هره ورځ صلوة تسبیح کوه، که نه په هره جُمعه کې یې کوه، کنه په کال کې یې یوځل کوه او که دومره هم نه شي کولای نو په ټول عُمر کې یې یو ځل خامخا وکړه. همداسې د تهجد لمانځه له پاره په ټول کال کې نه شو جګېدلای، نو په روژه کې خو هسې هم د پېشمني له پاره پورته کېږو، نو له دې موقع نه باید ګټه پورته کړو، فی الحال اودس وکړو او تهجد ادا کړو، په دې میاشت کې د تلاوت موقع هم وي، باید تلاوتونه هم وکړو، ذکرونه وکړو، لطائف تازه وساتو، د نفې او اثبات په وظائفو کې کوشش وکړو، همدا موقع ده ، په دې میاشت کې چې څومره مزدوري کېږي بل وخت دا موقع بیا نه وي.

نو غرض داده چې که مونږ او تاسې دغه وخت ته متوجه شو، قدر یې وکړو، قیمت یې راته معلوم شي نو بیابه یې مونږ ته ګټه رارسیږي، اوکه داسې نه وي نو بیا دغه میاشت خو په کفارو هم راځي، په فساقو او فجارو هم تیرېږي، په بد عمله خلکو هم تیرېږي، خو هغوی ته یې هېڅ فائده نشته، بلکې دخدای پاک ﷻ له غضب او قهر سره مخامخ کېږي. دا دخدای تعالیٰ ﷻ میاشت ده، د جنتونو دروازې په دې میاشت کې خلاصې اود دوزخونو بندې وي،

نو له دې موقع نه ګټه واخلئ. د حضرت نبي کريمﷺ دا معمول و چې د روژې مياشت به راننوتې شوه نو له مخکې نه به يې صحابهٔ کرامؓ خبر کړل چې ګورئ ! د خير او برکت مياشت راروانه ده، حضرت نبي کريمﷺ به په دې مياشت کې ډېر خوشاله و اودا به يې ويل چې : خدايه ! ددې مياشتې ټول فضيلتونه مو نصيب کړې. نو چې حضرت نبي کريمﷺ يې احترام او قدر کاوه، صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم يې عزت کاوه نو په مونږ هم لازم ده چې ددې مياشتې هغسې احترام او قدر وکړو لکه څرنګه چې په احاديثو کې يې بيان شوی دی. او وخت په غفلت او بې پروايي او په عبثياتو کې تېر نه کړو، ځکه دا وخت ډېر قيمتي وخت دی، بيا به يې ارمان کوو خو په لاس به څه نه راځي، نو مخکې له دې چې ارمان وکړو بايد خپلو اعمالو او کردار ته متوجه شو ، بيابه الله تعالیﷻ هم راسره کومک کوي.

الله تعالیﷻ دې مونږ او تاسې ټولو ته په دې وعظ او نصيحت د عمل کولو توفيق راپه برخه کړي. آمين.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلی الله تعالی علی خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين

# (۲٤) مجلس

## د فقهې او تصوف په اصطلاح کې د عبادت صحت او عدم صحت

په کوم لمونځ او عبادت کې چې حضور برابر نه وي د صوفياء کرامو په نزد هغه عبادت او لمونځ صحيح نه دی. اصلاً دلته دوه مسلکونه دي: يو د فقهاوو مسلک دی او بل د تصوف.

د فقهې علماء له ظاهر څخه بحث کوي، په ظاهره چې د لمانځه شرائط، ارکان او واجبات په صحيح طريقه ادا شي، حرام، مکروهات او مفسدات چې په لمانځه کې نه وي نو فقهاء دا فتوی ورکوي چې دا لمونځ صحيح دی، معنا د صحت يې داده چې ددې لمونځ کوونکي ذمه فارغه شوه او بيا ددغه لمانځه اعاده وربانديې نشته. يو څوک روژه ونيسي، له دغو دريو اعمالو خوراک، څښاک او جماع نه ځان وساتي نو فقهه وايي چې روژه يې صحيح ده، ذمه يې فارغه ده، دوهم وار روژه نيول وربانديې نشته.

هر عمل چې د شريعت په ظاهري چوکاټ کې برابر شو نو فقهه (شريعت) ددې فتوی ورکوي چې ددې سړي عبادت صحيح دی.

خو د صوفیانو کرامو په اصطلاح کې د صحت معنا (مقبولیت) ده، لمونځ، زکات، جهاد او حج دا به هلته صحیح وي چې مقبول وي، دا کار حضور غواړي اوله حضور سره د نیت اصلاح هم غواړي، رِیا به پکې نه وي، سړي ته به ځان غټ نه ښکاري، سُمْعَتْ به یې مطلب نه وي، یواځې او یواځې به یې د الله تعالیٰ ﷻ رضا حاصلول مطلب وي. نو صوفیاء کرام وایي چې کله حضور برابر شو، ظاهري شرائط زائد شیان دي، نو کله چې عبادت مقبولیت پیدا کړ نو بیا دغه عبادت صحي شو، فرض او واجبات ټول شرائط دي، خو چې نیت نه و صیحح نو د فقهې په اصطلاح کې هم ویل کېږي چې لمونځ یې صحیح نه ده، ځکه چې د خدای پاک ﷻ په نزد قبول نه ده، نوددغه سړي درجه په دې عبادت سره نه پورته کېږي.

روژه که د الله تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره نه وه نو هغه هم صحیح نه ده، په ظاهره خو یې ذمه فارغه شوه، خو خدای پاک ﷻ ته وربانديې نژدې کېږي نه. صوفیاء کرام چې دا خبره کوي هغوی ته الله تعالیٰ ﷻ باطني فراست ورکړی دی، نو دوی د عباداتو په هغه پټ راز باندې پوهېږي، چې په معنوي لحاظ په دې کې ګټه ده یا تاوان ده، په ظاهره به یو شی خوږ وي خو په باطن کې به یې بل شی وي چې هغه به د انسان له پاره تاوان وي، نو صوفیاء کرام هغو پټو معنوي نقصاناتو ته ګوري.

## علم ظاهر او باطن لازم او ملزوم دي

د يو بزرګ په واقعه کې راغلي چې: لمونځ يې وکړ، نو چې خپل لمانځه ته متوجه شو نو دا خپل لمونځ ورته ډېر ښائسته ښکاره شو [ هر عبادت، جومات، کعبه شريفه، انبياء عليهم السلام خپل حقيقت لري ] نو لمونځ يې ډېر ښائسته و، خو د لمانځه سترګې يې ړندې دي، دا بزرګ حيران شو چې لمونځ خو مې ډېر ښه په حضور ادا کړ، فرائض او واجبات يې هم ټول برابر و نو دا لمونځ ولې ړوند ده ؟ نو خپل مُرشد ته ورغی او ورته يې وويل چې: ما خو ډېر ښه لمونځ وکړ نو چې ورته متوجه شوم [ دې ته کشف الحقائق وايي ] نو خپل لمونځ مې ړوند وليده. نو مرشد يې ورته وويل : چې کېدای شي تا به په لمانځه کې سترګې پټې نيولي وي . ده ورته وويل چې: سترګې خو مې ددې له پاره پټې نيولې وې چې حضور مې ښه برابر شي، نو مرشد يې ورته وويل چې: له علم ظاهر څخه دې مخالفت کړی دی، نو ظاهري فيصله خو د علم ظاهر داده چې په لمانځه کې د سترګو پټول مکروه دي.

اوس نو ددې نه دا معلوميږي چې د صوفياء کرامو داحقيقت چې مخ په وړاندې ځي نو د شريعت ظاهري لحاظ به پکې وي، هغه به په ځای وي، نو که د شريعت لحاظ څوک ونه کړي، فرائض، واجبات او سُنن په ځای نه کړي که لمونځ ده ، که روژه ده او که بل

هر عمل ده نو د صوفیاء کرامو په نزد هم صحیح نه ده، داسې نه ده چې ظاهري که هرڅه ګډوډ وي خو چې نیت صحیح وي نو کار به جوړ وي.

د ایمان او احسان د مبارک حدیث په تشریح کې حضرت شاه انورشاه کشمیري رحمة الله علیه لیکي چې: د احسان مطلب داده چې علم ظاهر او باطن یو د بل له پاره لازم شي، داسې ربط پیدا شي چې د ظاهري اندامونو نښانه په زړه کې موجوده شي اود زړه نښانه په اندامونو کې جوت ( ښکاره ) شي. ظاهره صورت په شریعت داسې برابر کړي چې دهغه له وجې په زړه کې اثر پیدا شي اوپه زړه کې دومره حضور برابر کړي چې په ظاهره بدن یې اثرات ښکاره شي، په انسان کې تواضع او عاجزي پیدا شي، د خدای پاک ﷻ د ویرې علامې پیدا شي. نو علم ظاهر او باطن یو له بل سره تړلي دي، څوک وایي چې دا خاتته صحیح ده، څوک بل طرف ته صحیح ګڼي، خو صحت هلته پیدا کېږي چې دواړه کامل شي.

له دې امله حضرت امام مالک (رحمه الله) وایي چې: که څوک په ظاهره شریعت خان برابروي او دمعنویت څه لحاظ نه ساتي نودا شخص فاسق ده اوکه د باطن لحاظ ساتي اود ظاهر څخه بې پروا وي نو په دې سره کله انسان زندیقیت ته ورسیږي. او چې کله یې دواړه سره یوځای کړل نو دا شخص به بیا حقیقت ته رسیږي.

دده مبارک دا مقوله ده چې: وایي:

( من تفقه ولم يتصوف فقد تفسق .ومن تصوف ولم يتفقه فقد تزندق ومن جمع بينهما فقد تحقق ) يعنې څوک که يواځې ظاهري علم کوي او تصوف نه کوي [ خکه په تصوف سره اصلاح د نيت راځي د احسان او اخلاص پيدا کولو معنا ده] نو بيا دا شخص فاسق ده. او څوک چې يواځې صوفيتوب کوي اود ظاهره شريعت لحاظ ورسره نه وي دا کار کله کله سړی کفر ته ورنژدې کوي. د ظاهري شريعت معلومات ورته نه وي، په حلالو د حرامو اوپه حرامو د حلالو فتوی ورکوي. او څوک چې دواړه ( علم ظاهر او باطن ) سره يوځای کړي نودا شخص به حقيقت ته رسيږي.

## کوم لمونځ صحيح ده ؟

اوس نود علم ظاهر او علم باطن په اصطلاح هغه لمونځ صحيح کيږي چې ظاهري شرائط، فرائض، واجبات، سنن او مستحبات يې په ځای او له حرامو، مکروهاتو او مفسداتو څخه خالي او نيت يې پکې برابر وي. نو اوس چې ظاهر هم برابر شو او زړه هم په نيت سره برابر شو نو اوس د دواړو ډلو په اصطلاحاتو سره دغه لمانځه ته صحيح ويل کيږي.

همداسې روژه که ظاهري اندامونه کنټرول شي، له خوراک، څښاک او نورو نواهيو څخه ځان وساتل شي او ورسره نيت هم برابر وي نود شريعت او تصوف په دواړو اصطلاحاتو کې دا روژه

صحیح ده. یعنې هم د انسان ذمه فارغه شوه اوهم یې درجه وړباندې لوړیږي.

یو مسلمان دخپل مال حساب وکړي اود هغه مال زکات په شرعي طریقه ادا کړي، معنا داچې خپلو مستحقو کسانو ته یې ورکړي، مثلاً هغه غریب، مسلمان، ته یې ورکړي، خپل پلار، زوی، لمسي او همدارنګه مالداره ته یې ورنه کړي او له دې سره سره یئ نیت هم صحي وي چې مطلب یې د الله تعالی ﷻ رضا وي، دا وایي چې دا په ماباندې د الله تعالی ﷻ له طرفه یو حق ده، نو دفقهې په اصطلاح هم دا زکات صحیح کېږي، ذمه یې فارغه ده اود اهل تصوف په اصطلاح هم صحیح ده، خکه خدای پاک ﷻ یې قبلوي او درجې یې ورته لوړوي.

نو غرض داچې څوک دې دا تفرقه نه محسوسوي چې علم ظاهر یا علم شریعت خان ته شی ده او تصوف یعنې علم باطن څان ته شی ده.

حضرت شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله فرمایي چې: علم ظاهر او باطن د پوست او مغز حیثیت لري.

د بدن ظاهره څرمن ده، په منځ کې یې هډوکي دي ماغزه دي، نو دا شریعت هلته کامل کېږي چې ظاهره څرمن یې هم صحیح وه او باطن او مغز یې هم صحیح وي نو په دغه انسان بیا د ډاکټرانو له خوا د روغ جوړ حکم کېږي، کله د انسان ظاهره شکل او څرمن روغ وي خو په زړه یا دماغو کې تکلیف لري، لکه لبونیان چې په ظاهره

ښه رک روغ وي، ښه ښکلي رنګونه لري، خو څرنګه چې په ده کې معنوي او پټ نقصان ده، ځکه ورته مريض ويل کيږي، که همداسې ظاهره څرمن خرابه شي که زړه يې روغ وي خو بيا هم ډاکټران يې روغ نه بولي. نو دشريعت او طريقت معنا د پوست او مغز ده، ظاهر برابرول او نيت برابرول.

بالفاظ ديګر د ټول تصوف او طريقت خلاصه داده چې انسان بايد په ځان اوپه خپل هر عمل کې اخلاص پيدا کړي، بې له اخلاصه عمل خدای پاک ﷻ نه قبلوي، ﴿ وَمَآ أُمِرُوٓا إِلَّا لِيَعْبُدُوا ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ﴾ خلکو ته امر نه دی شوی مګر په دې چې د خدای پاک عبادت به کوي په داسې حال کې چې اخلاص به پکې وي. که اخلاص نه وي نو کوم قدر او قيمت يې نشته.

## د رياکارانو انجام

په حديث شريف کې دي چې: د دوزخ اور په دريو طبقو باندې بليږي:

**اول** : ريا کار عالم.

**دوهم** : ريا کار سخي.

**دريم** : رياکار شهيد.

شهید به الله تعالیﷻ راوغواړي او ورته به وایي چې په تا مې په دنیا کې څومره نعمتونه لورولي و؟ تا دهغو نعمتونو څه شکرانه ادا کړه ؟ دی به ورته په ځواب کې وایي چې: زه ستا د دین د ساتنې له پاره وجنګېدم تردې پورې چې خپل ځان مې هم قربان کړ. خدای پاکﷻ به ورته وایي چې: ﴿كَذَبْتَ﴾ دروغ دې وویل. ته ددې له پاره جنګېدلې چې خلک دې باتور وګڼي چې فلانکی څومره تکړه او ښه مجاهد ده، څه ښه جنګ جګړه کوي، په جنګ کې دې زما رضا نه بلکې خپل عزت او نوم مقصد و، هغه تاته په دنیا کې ویل شوي دي. نو الله تعالیﷻ به ملائکو ته وایي چې: دوزخ ته یې کش کړئ!

دوهم هغه عالم چې د ښودنې او ریاکاري اوياد نورو دنیوي مقاصدو له پاره یې علم حاصل کړی وي اود الله تعالیﷻ رضا یې شاته غورځولې وي. د قیامت په ورځ به په هغه لوی دربار کې دی هم حاضر کړل شي او ورته به وویل شي چې: په تا خو مې هم ډېر احسانات کړي وو، تا یې څه شکرانه ادا کړې ؟ دغه دنیا پرسته او ریاکار عالم به د الله تعالیﷻ په ځواب کې وایي چې: ما ستا دین زده کړی و او خپل ټول ژوند مې ددې دین د خدمت له پاره وقف کړی و، خلکو ته مې ستا دغه دین ورساوه. الله تعالیﷻ به ورته په ځواب کې وایي چې: ﴿كَذَبْتَ﴾ دروغ دې وویل. تا دین ددې له پاره حاصلاوه او زده کاوه ترڅو دې خلک ښه عالم وبولي او عزت مې وکړي، خلک شُکرانې راکړي، پیسې راکړي، تا غوښتل چې په دې علم سره خلک د ځان تابع کړې. ستا هغه ټول مقاصد په دنیا کې حاصل شوي دي، تاته په دنیا کې خلکو ښه عالم ویلی . دلته دې له

ماسره کومه بدله نه ده پاتې. ملائکو ته به وویل شي چې دی هم دوزخ ته داخل کړئ!.

دریم به هغه سخي راوغوښتل شي چې شپه ورځ به یې صدقې او خیراتونه زکاتونه ورکول، له طالبانو، مجاهدینو او نورو مجبوره کسانو سره به یې مرستې کولې. نو الله تعالیٰ ﷻ به ورڅخه پوښتنه وکړي چې: تاته خو مې ډېره دنیا، جایداد او مال دولت درکړی و، تا ددغو نعمتونو په مقابل کې زما څه شکرانه ادا کړه ؟ دی به د الله تعالیٰ ﷻ ددې پوښتنې په ځواب کې وایي چې: ستا د دین په هره شعبه کې ما خپل مال مصرف کړی ، یواځې ستا د رضا له پاره مې ستا له مسکینانو بندګانو سره کومکونه کول. الله تعالیٰ ﷻ به ورته وایي : ( كَذَبْتَ ) دروغ دې وویل. ددې له پاره دې خیراتونه کول چې خلک دې مهمان نوازه وبولي ، او خلک ووایي چې څه ښه سړی دی د خلکو خدمتونه کوي، له خلکو سره کومکونه کوي. نو تاته دا هرڅه په دنیا کې ویل شوي . ملائکو ته به امر وشي چې دوزخ ته یې پرمخې ور واچوئ!.

اوس نو که مونږ له ځانه سره فکر وکړو چې بهترینې لارې همدا درې لارې دي چې سړی یا ښه عالم وي، یا مجاهد وي اویاهم ښه سخي وي، خو چې په دې هر یوه کې اخلاص نه وي، خدای پرستي نه وي، باطن برابر نه وي، نو هېڅ فایده پکې نشته. نو ترټولو مُهم او ضروري شی د ځان اصلاح ده، د باطن برابرول دي، هرڅومره چې اعمال وګورې خبره یې بېرته نیت ته راګرځي. ﴿ انما الاعمال بالنيات ﴾. د ټولو اعمالو دارومدار په نیت سره ده. که نیت اصلاح و

نو عمل به هم مقبول وي. که ظاهري څه نقصانات و بيايې هم برداشت کېدلای شي خو که باطني خُبث او نقصانات پکې وي بيا هغه عمل کوم اعتبار نه لري، اونه هم دخلاصون ذريعه گرځېدلای شي. څکه که لږ رِيا هم پکې پيدا شي نو شرک گڼل کېږي او بيا به يې خدای پاک نه قبلوي او الله تعالی ﷻ به ورته په خواب کې وايي چې: د چا له پاره چې دې دا عمل کړی نو ورشه له هغه څخه يې ثواب او اجر غواړه او له ماسره يې ثواب نشته.

## ديوه لمانځه په جمعه نه کولودخدای پاک ﷻ له رضا محروم کيدل

حضرت حسن بصري (رحمة الله عليه) په حضرت حبيب عجمي (قدس سره) پسې د ماښام لمونځ کوي، کله چې حبيب عجمي (رحمه الله) قرائت شروع کړ نو دی خو عجمي و د تلاوت حروف يې سم نه شو ادا کولای. نو د ( الحمد ) په ځای يې ( الهمد ) وويل. حضرت حسن بصري (رحمه الله) جيد عالم اود حبيب عجمي استاد و، نو حسن بصري صاحب سلام وگرځاوه او ځان ته يې په لمانځه شروع وکړه. حضرت حسن بصري (رحمه الله) د شپې الله تعالی ﷻ په خوب کې ويني او له خدای پاک ﷻ نه پوښتنه کوي چې ای خدايه! ته په کوم عمل ډېر خوشحالېږې ؟ چې زه هغه عمل وکړم او ته راڅخه راضي شې . نو الله تعالی ﷻ په خواب کې ورته وويل چې:

زما رضا خو تاته د ماښام په لمانځه کې په لاس درغلې وه خو تا پرېښودله. یعنې که په حبیب عجمي پسې دې لمونځ کړی وای نو زه راضي وم. دی په ځواب کې ورته وايي چې: خدایه! هغه خو عجمي ده، حروف یې صحي نه شو ادا کولای، نو ځکه مې لمونځ پسې ونه کړ. الله تعالیٰ ﷻ ورته وویل چې: که عجمي هم ده خو حبیب ده. زما د دوستانو له جُملې څخه ده. نو چې سړی حبیب شي، دوست شي نو د هر کم شی یې هم قبلیږي.

نو مطلب داچې اصلي کار نیت جوړوي. نو چې یوڅوک د چا دوست شي نو هغه دوست بیا ورته له ډېرو نقصاناتو تیریږي. او که یو وار خدای مه کړه دښمني جوړه شوه نو بیا کم کم شي ته هم ګوري. چې دا دې ولې کړي دي.

د یوچا خپل اولاد وي مور او پلار ورته له ډېرو نافرمانیو څخه ورتیریږي، ځکه چې دوست یې ده، دا خپل اولاد ورته ګران وي، تردې پورې چې یو سړي جرم کړی وي نو د وخت بادشاه ته د هغه یو خاص دوست وسیله ګرځوي اود سفارش له پاره یې ورته بیايي چې له ما جُرم شوی دی ته راسره ولاړ شه نو بادشاه یا والي یا ولسوال هغه مُجرم ددغه دوست په وجه معاف کړي چې فلانکی ورسره راغلی ده.نو چې یو څوک یو وار د خدای تعالیٰ ﷻ حبیب شي، دده ﷻ له دوستانو څخه حساب شي نودده له وجې نور هم معاف کوي.

نو په طريقت کې مقصد په هر عمل کې اخلاص پيدا کول دي، يو ځوک که دخدای تعالیﷻ دوست کېږي نو دا کار په اخلاص سره لاس ته راځي، که اخلاص نه وي، نيت صفا نه وي نو يواځې په اعمالو سره يو ځوک د خدای تعالیﷻ دوستي نه شي ترلاسه کولای. بيا به ورسره محاسبه کېږي.

## حضرت نبي کريمﷺ د محبوبينو له جُملې څخه ده

حضرت نبي کريمﷺ د محبوبينو له جُملې څخه ده، دده ﷺ په برکت هغه آفتونه او مصيبتونه او عذابونه چې په مخکنيو قومونو په اجتماعي شکل راتلل هغه آفات او مصيبتونه اوس نشته. ځکه قرآن کريم په دې ګواه دی چې په پخوانيو قومونو کې به سرکشي زياته شوه، د وخت د پيغمبر سره به يې مقابله شروع کړه نو الله تعالیﷻ به عام مصيبت او عذاب وربانديې راوست او په اجتماعي طور سره به يې هلاک کړل، خو دحضرت نبي کريمﷺ امتيان ، که هغه د اجابت امتي وي او که د دعوت امتي وي، حتی د کفارو له پاره هم رحمت ده، هغوی هم نه تباه کېږي. مسلمانان چې فاسقان وي هغه هم دخپلو بدبختيو او ګناهونو په سبب په اجتماعي طور نه هلاکېږي. تاسې ته به معلومه وي چې په مخکينيو قومونو کې به په يوه ګناه سره قومونه نيست ونابود شول، په ځمکه به يې ننه ايستل. اود حضرت نبي کريمﷺ په امت کې هغه ګناهونه په

مسلمانانو کې تولې موجودې دي خو بیا یې هم الله تعالیٰ ﷻ نه تباه کوي. ولې ؟ ځکه چې دا د حبیب اُمت ده.

## د حضرت نبي کریم ﷺ قاصد خدای پاک ﷻ ته تر بل هر وار ډېر ورنږدې شو

یو وخت په کومه مسئله کې یو صحابي رضی الله عنه له حضرت نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه کوله، حضرت نبي کریم ﷺ له حضرت جبرئیل علیه السلام څخه پوښتنه وکړه، حضرت جبرئیل علیه السلام ورته وویل چې ماته هم په دې باره کې څه معلومات نشته، زه به یې له الله تعالیٰ ﷻ څخه پوښتنه وکړم، نو کله چې د الله تعالیٰ ﷻ له حضور څخه بېرته راغی نو حضرت نبي کریم ﷺ ته وایي چې: زه الله تعالیٰ ﷻ ته دومره زیات ورنږدې شوم چې بل هېڅ وخت دومره زیات نه وم ورنژدې شوی. دا ځکه خدای پاک ﷻ ځان ته نژدې کړ چې حضرت جبرئیل علیه السلام یې د حبیب قاصد و. د حضرت نبي کریم ﷺ قاصد و. نو څوک چې یو وار حبیب شو نو له ده سره بیا دده خپلوان هم خلاص دي.

په آیت شریف کې راځي: که یوڅوک دخدای پاک ﷻ له دوستانو څخه وي او اولاد یې هغه رتبه نه لري، خو بیاهم الله تعالیٰ ﷻ یې له هغې رتبې سره یوځای کوي. خدای پاک ﷻ خپل دوست نه خفه کوي او دوستي په هغه ځای کې معلومېږي چې په یو چا سختي اوتنګي

راشي. پښتانه هم وايي چې دوست سړي ته په تنګي کې په ښه ورځي، داچې ژوند آرام وي، تکاليف، عبادات او احکام نه وي بيا خو هرڅوک وايي چې زه هم مسلمان يم. په عباداتو کې به سړی تکليفونه تېروي، په آفاتو او بلياتو به صبر کوي، ترڅو ستا هغه صداقت و ازمويل شي چې ته په دې خپله خبره کې په رښتيا سره رېښتونی يې نو چې رېښتينولي دې ثابته شوه نو بياستا په برکت سره دنورو خلکو کار هم جوړېږي. نو الله تعالیٰ ﷻ دې په مونږ او تاسو کې واقعي اخلاص پيدا کړي.

د انسان د اصلاح بهترينه طريقه طريقهٔ محمديه ده. چې دا کتاب ده چې په هغه کې د حضرت نبي کريم ﷺ اخلاق او عادات اوانسان باطني امراض اودهغه د علاج لار مکمل بيان شوې ده. که مونږ او تاسې سوچ وکړو چې انسان ماته څه راکولای شي. که يو څوک مې مولوي صاحب، خليفه صاحب، حاجي صاحب وبولي، که دی راته ځپلې برابرې کړي، نو دا کار په آخرت کې ماته څه ګټه رارسولای شي ؟ له کوم عذاب څخه مې خلاصولای شي. نو په دې سوچ سره چې ترڅو په خپله په ځان کې اخلاص پيدا نه کړم اود خدای تعالیٰ ﷻ رضا په خپله حاصله نه کړم نو ددې خلکو په آخرت کې هيڅ ګټه نه رارسيږي نو په خپله به په انسان کې اصلاح راشي او د الله تعالیٰ ﷻ طرف ته به متوجه شي.

که تاسې د صوفياء کرامو او نورو اولياء الله وو واقعات وګورئ نو په هغې کې دا معلومه ده چې انسان هغه وخت کمال ته رسيږي چې که دده عيبونه بيانوي اويا دده صفت کوې دا دواړه په ده باندې يو

شان وي، که څوک یې صفت کوي اوکه غیبت یې کوي ده ته کوم فرق نه ورکوي. ځکه دا د دین کار خو څوک دکوم بل چا له پاره نه کوي بلکې د الله تعالی ﷻ د رضا اود خپل ځان د ګټې له پاره یې کوي.

د یو ولي په واقعه کې راځي چې: کله یې دی مبارک په قبر کې کېښود نو دسوال او ځواب له پاره ورته ملائکې (نکیر او منکر) راغلې نو هغوی ورځخه پوښتنه وکړه چې: (من ربُکَ) رب دې څوک ده ؟ ده ورته وویل چې: زما نه پوښتنه مه کوئ. خدای تعالی ﷻ ته ورشئ چې هغه ما څه بولي ؟ چې ما په بندګي مني اوکه نه ؟ که زه هرڅومره ووایم چې زه د خدای بنده یم خو که العیاذ بالله خدای پاک مې بندګي ونه مني نو بیابه ددې بندګي فائده څه وي ؟

نو لنډه داچې انسان هغه وخت لوړو مقاماتو ته رسیږي چې د خلکو صفت او غیبت په ده هیڅ اثر ونه کړي، ځان هیڅ وګڼي، عدم یې وګڼي. حتی حضرت مجدد صاحب قدس سره فرمایي چې: ځان له کافر ځخه بهتر ګڼل هم دکمال ننبه نه ده، نو کله چې په عُجز قائله شوې نو بیابه ترقي فی المقامات راځي.

افتادګی آموز اګر طالب فیضی — هرګز نخورد آب زمینی که بلند است

شاعر وایي چې: که فیض، خیر او برکت غواړي نو عاجزي کوه، ځکه کومه ځمکه چې په نوره ځمکه باندې پورته او لوړه وي هغې ته هیڅکله اوبه نه ورځي. نو که ته هم غرور او تکبر کوې نو تاته به

هم هېڅکله فیض در ونه رسیږي. نو که د الله تعالی ﷻ قُرب او رضا غواړئ نو له عُجز او انکسار څخه کار واخلئ.

**وآخر دعوانا ان الحمد للّٰہ رب العلمین**

و صلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا و سندنا و شفیعنا و مولانا محمد و علی آله و اصحابه و اتباعه و اهل بیته اجمعین.

الله الله الله

# (۲۵) مجلس

## د صالحانو او د ذِکر بیان

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

امابعد: قال الله تعالى فى كتابه الكريم ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا دَاوُدَ مِنَّا فَضْلاً يَـٰجِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ وَٱلطَّيْرَ ﴾

حضرت داؤد ﷺ د الله تعالی ﷻ یو برگزیده او نازولی پیغمبر و، نو حضرت داؤد ﷺ له الله تعالی ﷻ څخه دا غوښتنه وکړه چې که په یوځای کې ستا د ذِکر مجلس وي او زه له هغې څخه په غفلت کې تېرېږم نو خدایه زما پښې ماتې کړې. په دې وخت کې دا د پښو ماتېدل زما له پاره یو نعمت ده، ځکه د غفلت په حالت کې زه تباه کېږم، ایمان او عقیده مې خرابیږي.

حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي چې: کله تاسې د جنت په باغیچو تېرېږئ نو پکې څرېږئ ! صحابهٔ کرامو ﷺ ورڅخه پوښتنه وکړه چې: د جنت باغیچې څه شی دي ؟ ده ﷺ ورته وویل چې: د ذِکر حلقې دي. یا د حدیث مبارک الفاظ داسې دي چې: کله په باغیچو د جنت

تېرېږئ نو چې څومره زيات پکې څرېدلی شئ وڅرېږئ! نو دغه د ذکر مجالس دا د جنت باغونه دي. هغه برکات او خوشحالي چې په جنت کې پيدا کېږي ددې مجلس ذکر له وجې پيداکېږي، نو دلته چې په دې مجالسو کې څومره زيات وخت مصرف کړل شي هلته به يې په جنت کې مقام او مرتبه هم دومره اوچته وي. حضرت نبي کريمﷺ فرمايي چې: که يوڅوک دوه زره مجلسونه بې باکه وکړي اود ذکر په يوه مجلس کې شريک شي نودغه يو مجلس يې ددې ټولو بېهوده مجلسونو کفاره ګرځي.

حضرت ثابت بناني قدس سره وايي: کله چې الله تعالیﷻ ما يادوي، نو زه پوهېږم . خلک حيران شول چې دا څه وايي ؟نو پوښتنه يې ورځخه وکړه چې ته خو پيغمبر نه يې چې تاته وحيې وشي او ته ورباندې پوه شي چې اوس تا خدای پاکﷻ يادوي. دی په ځواب کې ورته وايي چې: زه کله خدای پاکﷻ يادوم نو زه پوه شم چې خدای پاکﷻ ما يادوي، ځکه الله تعالیﷻ وعده کړې ده چې:﴿ فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي ﴾ تاسې ما يادوئ زه به تاسې يادوم. نو دخدای پاکﷻ په وعدو کې خو دروغ نشته. مونږ الله تعالیﷻ په ژبه، زړه او نورو اندامونو يادوو او الله تعالیﷻ چې مونږ يادوي نو په رحمت سره مو يادوي، د الله تعالیﷻ خصوصي رحمت هغه ځای ته متوجه کېږي. حتی د حضرت نبي کريمﷺ په مبارک حديث کې راځي چې: د ذاکرينو په مجلس کې ټولو ته په آخر کې د مغفرت اعلان کېږي، چې تاسې څومره سوالونه او

غوښتنې کړي دي هغه ټول قبول دي، که مو د جهنم له اوره پناه غوښتي وي هم له هغې څخه خلاص یاست.

## تنبیه

ذکر باید یواځې په دې کې منحصر نه کړی شي چې یواځې ( سبحان الله ) یا ( الله الله ) ویل ذکر ده، بلکې درس او تدریس، د قرآن کریم ترجمه او تفسیر دا ټول په ذکر کې شامل دي، ځکه دلته هم د الله تعالی ﷻ صفات بیانیږي، دهغه ﷻ د کلام تشریح کېږي، ځومره چې د هر وخت پکې تیریږي همدومره د هر رحمت به دغه ځای ته متوجه وي. همدارنګه په مدارسو کې وخت تېرول، سبقونه ویل، مطالعه او تکرار کول، له استاد څخه کتاب اوریدل دا ټول د ذکر مجلسونه دي خو په دې شرط چې که مونږ ته یې قیمت معلوم شي.

یو سالک وایي:

*یک ساعت صحبتی با اولیاء بهتر از صد سال طاعت بی ریا*

له اولیاوو الله سره لږ څه وخت تېرول دا له سل کلن بې ریا طاعت څخه بهتر دی، خو حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمة الله تعالی علیه ورسره یو شرط ایښی دی او هغه دا چې په دې مبارکانو باندې د جذب یو حالت راځي، یا یو حال د توجه الی الله موجود شي نو په هغه ساعت کې که ته هم ورسره شریک شوې نو ستا د

سلو کلونو له عبادت نه هغه یو ساعت بهتر ده. نو له دې وجې باید مونږ اوتاسې دهغوی په مجلسونو کې شرکت وکړو، دهغوی په مجلسونو کې په ادب سره حاضرشو، دهغوی خدمت په ځان لازم وګڼو، هغوی ته په ښه عقیده نظر وکړو، دهغوی عظمت په زړه کې وساتو، کېدای شي چې الله تعالیٰ ﷻ مو له هغه یو ساعت سره کله مخامخ کړي، نو د دنیا او آخرت کارونه به مو په داسې طریقه برابر او جوړ شي چې مونږ به یې سوچ هم نه وي کړی.

مونږ چې د خپلو بزرګانو د ذِکر په مجلسونو کې وخت تېر کړی نو په هر مجلس کې پوره پوره اثر نه وي، دومره فی نفسه اثر خو خامخا وي، خو که کله مو پام کړی وي په ځينو ختمونو کې د یو چا زړا ښبخي نه درېږي او کله بیا په ځينو ختمونو کې هېڅ هم نه وي، ددې هرڅه خپل وخت او حالت وي، کله کله د یو شوم او بدبخت د شرکت له وجې په هغه ټول مجلس د الله تعالیٰ ﷻ رحمت بند وي، ځکه هغه له اولیاء الله وو سره قلباً تعلق نه لري، نو ځکه په هغه مجلس کې اثر نه وي او فیض ټول بند شي.

## د یو شُوم له لاسه د رُوم ټول ښار وسوزېده

په کتابونو کې لیکي: از دست یک شوم سوخت تمام شهر روم. د یوه شوم او بدبخت له وجې د روم ټول ښار وسوځېده، کله د ځينو بدبختو له وجې په ټولو خلکو عام عذاب راشي اود وچو له تپه

لامده هم وسوځي. ځکه قرآن کریم په دې خبره شاهد دی. او وایي چې: له دې وډار شئ چې که بیا د خدای عذاب راغی نو هغه به یواځې ظالمان نه هلاکوي بلکې ټول به رانیسي.

په یوه علاقه کې به ښه متقي او خدای پرسته عالم او ښه سړی وي، خو په دې محله او علاقه کې به داسې ګناهونه کېږي چې د هغو له وجې به الله تعالی ﷻ بارانونه بندوي، ټول به دعاګانې کوي او هېڅ به نه قبلیږي، نو کله داسې د قبض حالات مشائخو ته هم پیدا کېږي.

لنډه داچې په اکثرو مجالسو کې یو څوک شرکت کوي نو کېدای شي کله په داسې یو مجلس ور برابر شي چې یوساعت به یې د سلو کلونو له بې ریاعبادت څخه زیات اجر او خوشحالي لري. (جذبة من جذبات الحق یوازی عمل الثقاین) د حق له جذبو نه یوه جذبه د ټولو انسانانو او پېریانو له عبادت او اعمالو سره برابره ده. نو که په داسې حالت کې یوڅوک دغسې یو ځای ته برابر شي نو په یوه مجلس کې به یې کار جوړ شي. کله کله داسې هم پېښه وي چې په یوه مجلس کې دیوه سړي د ډېرو وظیفو کار خلاص شي، کله په یوه ختم کې داسې پېښه وي چې څومره شریکان ناست وي د یوې یوې لطیفې کار د ټولو خلاص شي ، کله په یوه مجلس کې د شیخ او مرشد په یوه توجه سره د ولایت ټول مقامات پوره شي، نو حالات له حالاتو سره فرق لري.

ددې له پاره مفسرين کرام وجه دا بيانوي چې: لمر په څلورم آسمان کې ده، دغه لمر ځمکې ته رارسيږي، د باندې خلک هم ورته ګرځي، رڼا يې ټولو موجوداتو ته رسيږي، خو کله کله چې دغه لمرته يوه شيشه مخامخ شي اوبيا دا شيشه مالوچو (پنبه) ته برابره شي، د شيشې وړانګه پرې ولويږي نو هغه مالوچ اور اخلي، سره له دې چې لمر په خپله په مالوچو لګيږي خو د لمر د رڼا له وجې اور نه اخلي ، خو کله چې د شيشې هغه وړانګه چې له لمر څخه يې اخيستې ده هغه ورته برابره شي نو بيا دا پونبه اور اخلي. نو د الله تعالیٰ ﷻ رحمت هم عام ده، خو هر سړی د خپل استعداد موافق برداشت لري. کله کله يو څوک د يو ولي شيشې ته برابر شي (ځکه دوی ته د محبوبيت صرفه مقام حاصل ده ) نو چې هغه تجليات ذاتي د الله تعالیٰ ﷻ راشي او په هغه حالت کې ته هم ورته مخامخ شوې نو ټول کارونه به دې په يوه وار سره خلاص شي. دا خبره د تفسير ده. د قيل او قال خبره نه ده. او عقل يې هم مني. لمر شته خو مالوچ اور نه اخلي، خو چې شيشه ورته مخامخ شوه او د شعاعو انعکاس وشي نو دلته مناسبت پيدا شي، قرب موجود شي، نو دهغه قُرب له وجې نه تاثير هم زيات شو. د الله تعالیٰ ﷻ او بندګانو ترمنځ مراحل دي، مونږ کمزوري يو، الله تعالیٰ ﷻ انسانانو ته پيغمبران رالېږل نو کفارو به اعتراض کاوه چې مونږ ته ملائکې ولې نه راځي ، خدای پاک ﷻ ورته وويل چې: تاسې دملائکو ملکوتي صفات نه شئ برداشت کولای، ستاسې اود ملائکو ترمنځ مناسبت نشته، تاسې سره يواځې دخپلو همجنسو ( انسانانو )

مناسبت ده نو ځکه پیغمبر هم درته ستاسې له ډلې انسان درلېږو. ترڅو تاسې یې برداشت وکړای شئ!

صحابهٔ کراموﷺ د حضرت نبي کریمﷺ سره دملاقات په وخت کې نه بې هوښه کېدل، خو که په شاته طبقاتو کې یوچاته د حضرت نبي کریمﷺ رابطه پیدا شي نو بیایې برداشت نه شي کولای. همدارنګه د لویو لویو اولیاوو الله وو سره خلکو کلونه کلونه تېر کړي دي خو هغوی به له خپل حال څخه نه وتل، خو که نن یو چاته په ختم کې دیو شیخ رابطه برابره شي نو بیا له حال څخه وځي ، له خولې یې چیغې وځي او برداشت یې نه شي کولای.

نو دلته مناسبت موجود ده، فیض زیاتیږي، هغه هم انسان ده، دی هم انسان دی، د انسانیت له وجې اکتساب کولای شي، له دې وجې چې زیات فیض ورته انتقالیږي نو ځکه یې اثر هم ډېر وي.

قرآن کریم د الله تعالیﷻ کلام دی، ټولې دنیا ته یو شان راغلی، پیغمبرﷺ ټولې دنیا ته مبعوث دی، خو په خلکو کې فرق دی، په استعدادونو کې فرق دی. مثلاً یو استاد په سلګونو شاګردانو ته سبق وایي ، په دغو ټولو طالبانو کې د دوه کسانو استعداد هم سره برابر نه وي، یو ملګری ټول سبق زده کړي، بل نیم زده کړي، بل دریمه حصه زده کړي، دا ځکه چې په استعدادونو کې فرق ده.

# دبایزید بسطامی رحمه الله په لیدلو یې خپل روح له لاسه ورکړه

یو شیخ خپل مُرید ته وایي چې درځئ د بایزید بسطامي صاحب ملاقات ته ولاړ شو، نو مرید ورته وویل چې یوڅوک د الله تعالیٰ انوار، تجلیات او فیوضات په خپله ویني نوهغه ته د بایزید بسطامي د لیدلو څه ضرورت دی ؟ نو مُرشد یې ورته وویل چې: دلته یې د خپل استعداد موافق ویني او هلته به یې د بایزید بسطامي د استعدادموافق ووینې. نو کله چې د حضرت بایزید بسطامي کورته ورغلل اودهغه پوښتنه یې وکړه چې بایزید بسطامي صاحب چېرته دی، نو متعلقینو ورته وویل چې: هغه اوبه راوړي. دوی یې مخې ته ور ووتل، له هغې خوا نه یو ملنګ د اوبو یو لوښی رااخیستی او را روان دی، کله چې دغه مرشد بایزید بسطامی صاحب ولید نو خپل مرید ته یې وویل چې: دا بایزید بسطامی دی ، کله چې مرید ورته وکتل نو له دې سره سم یې له خولې څخه بې اختیاره چیغې ووتلې، پورته کېده اوپه ځمکه لګېده او روح یې قبض شو. نو ددې مُرید مرشد له بایزید بسطامي څخه پوښتنه وکړه چې دا څه کیفیت او پېښه وه ؟ ده مبارک ورته وویل چې: دده د ذاتي تجلیاتو یو قِسم د ما تر لیدلو پورې ترلي وو، کله چې یې په ماباندې سترګې ولګېدې نو هغه انوار

ورخلاص شول، برداشت یې نه درلود نو ځکه یې روح قبض شو. نو دادې نه حضرت بایزید بسطامي بې حاله شوی .نه ددغه مرید مرشد بې حاله شوی. خو د مرید یې دغه برداشت و.

نو غرض دا چې په ښکو مجلسونو کې څومره ډېر اشتراک کېږي نو په هغې کې ګټه داده چې کله کله سړی د خیرات په مجلس برابر شي، د وېش په مجلس برابر شي، نو هلته یې بیا په یوه چیغه د دُنیا او آخرت کارونه برابر شي. دغه مجلس بیا د ډېرو مجلسونو له پاره کفاره ګرځي. دا صحبت بیا د سلو کلونو بې ریا عبادت څخه بهتره دی. انسان په خپلو شخصي ریاضتونو هغه ځای ته نه رسیږي لکه څنګه چې په یوه مجلس سره کله کله رسیږي. نو له دې وجې نه باید هر وخت له اهلِ خیر سره زمونږ ناسته پاسته وي. حضرت مجدد صاحب دا خبره کوي چې: له اولیاؤالله سره باید د زړه له اخلاصه تعلق وي، خصوصاً له خپل مرشد سره باید زیاته علاقه وساتل شي..

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

# (۲٦) مجلس

## د وخت ارزښت او د خدای پاک ﷻ نه د ډار اسباب، یاد آخرت طرف ته متوجه کېدل

حضرت بایزید بسطامي قدس سره خپلې مور مبارکې په سبق ویلو پسې ولېږه، په یوه مدرسه کې یې واړول او د قرآن کریم په تلاوت یې شروع وکړه، کله چې دغه آیت ته ورسېده ﴿ أَنِ ٱشْكُرْ لِي وَلِوَٰلِدَيْكَ ﴾ یعني د خدای پاک حُکم ده چې تاسې زما شکر او د مور اوپلار شکر اداکوئ نو په ده مبارک باندې دغه آیت ډېر زیات اثر وکړ، له دې وروسته یې له أستاد څخه اجازه واخیسته او کور ته راغی او خپلې مور ته وایې چې مورې ! نن مې په قرآن عظیم الشان کې یو آیت ووایه، په دې آیت کې الله تعالیٰ ﷻ حکم کړی دی چې تاسې زما او د مور او پلار شکر ادا کړئ. نو زه خو ډېر عاجز یم، د دواړو کماحقه خدمت نه شم کولای، داسې نه شم کولای چې د خدای تعالیٰ ﷻ پوره معرفت هم حاصل کړم او د مور او پلار خدمت هم وکړم. نو یا مې خدای پاک ﷻ ته وقف کړه چې زه د دین زده کړم او دی ﷻ وپېژنم. او یا مې له خدای تعالیٰ ﷻ نه داسې وغواړه چې تا ته مې هبه کړي چې یواځې ستا خدمت کوم. نو مور مبارکه یې

ورته وایي چې: زوی جانه ته مې یواځې د خدای د دین خدمت ته وقف کړی، ما خپل حق درته ببنلی، زه خپل خدمت درڅخه نه غواړم. نو حضرت بایزید بسطامي قدس سره له بسطام څخه د شام په طرف روان شو، اومسلسل دېرش کاله یې په سفر کې تېر کړل، په دغو (۳۰) کلونو کې یې دخدای ﷻ دین زده کړ، له طالبي څخه مُلایي ته ورسېد او تردې حده یې تقوی او خدای پرستي زیاته شوه چې توله شپه به یې په عبادت تېروله اود ورځې به یې خپل سبقونه ویل.

له خدای پاکﷻ څخه دومره زیات ډارېده چې یوه شپه یې دومره ډېر وژړل چې آخر مُریدان ورته راغلل او ورته وایي چې په تا خو الله تعالیﷻ ډېر احسان کړی دی، ډېر لوی مقام یې درکړی نو دومره زیات ولې ژاړې ؟ نو دی مبارک ورته وایي چې له دې وجې ژاړم چې: که له مانه یو داسې عمل شوی وي چې زه ورباندې خبر نه یم او په هغه باندې الله تعالیﷻ ناراضه وي نو زه به خدای پاکﷻ ته څه جواب ورکوم ؟

## د حضرت بایزید بسطامی او سپي ترمنځ محاوره

حضرت بایزید بسطامي رحمه الله په یوه کوڅه کې روان ده، دده له خوا سره یو سپی تېر شو، ده مبارک خپلې جامې ورڅخه راټولې کړې، له دې سره الله تعالیﷻ ورته سپی گویا کړ. سپي ورته وویل

چې: یا شیخ: که چېرته زه وچ یم نو له وچ سپي سره په لګېدو سره جامې نه مرداریږي. اوکه زه لوند یم نو که له لانده سپي سره دې جامې ولګېږي بیا هم په درې ځله مینځلو سره جامې پاکېږي. خو که په تا کې عُجب او تکبر پیدا شي نو که د اوو سمندرونو اوبه په خپل ځان تویې کړې بیاهم نه پاکېږې. نو حضرت بایزید بسطامي رحمه الله دې خبرې ته حیران شو او بیا یې سپي ته وویل چې: په تا کې ظاهري نجاست ده، ظاهره بدن دې نجس ده، په ما کې باطني نجاست ده، په انسان کې چې بده عقیده او بداخلاق پیدا شي نو باطني خبث او نجاست پکې پیدا کېږي، نو په تاکې ظاهري او په ما کې باطني نجاست دی ، نو راځه چې دواړه سره ملګرتیا شروع کړو، دواړه به یو ځای وخت تېروو، او یو له بل څخه به عبرت اخلو. سپي ورته په خواب کې وویل چې: زما او ستا په منځ کې دوستي نه شي کېدلای، ته زما د دوستي لائق نه یې ، ځکه زه چې په هرځای کې له خلکو سره مخامخ شم نو خلک مې په تیږو او لوټو ولي ، ما له خانه چغې کوي. او ته چې کوم مجلس ته ورشې نو ټول خلک درته په احترام ولاړ وي چې شیخ المسلمین راغی.خو لیکن زمانه په ورځ د قیامت پوښتنه نشته او له تا نه ددغه هر څه دقیامت په ورځ پوښتنه کیږي نو زما اوستا ترمنځ جوړه نشي راتلای حضرت بایزید بسطامي صاحب په ژړا شو چې زه د سپي د ملګر تیا لائق هم نه یم دهغه پو ښتنه نشته او زما نه پوښتنه شته ځکه له ما سره ملګر تیا نه کوي، نو زه به د الله تعالیٰ ﷻ د دوستي اود جناب حضرت محمدرسول الله ﷺ د دوستي لایق څرنګه وګرځم.

## د حضرت خواجه عبدالخالق غجدواني قُدس سره خپلو مریدانو ته بهترین نصیحت

حضرت خواجه عبدالخالق غجدواني قدس سره خپلو زامنو ته نصیحت کوي او ورته فرمایي چې: زامنو! شپه ورځ د خدای تعالیٰ ﷻ بندګي کوئ! کوم نعمتونه چې تاسې ته الله تعالیٰ ﷻ درکړي دي د هغو شکر ادا کوئ! یوه لحظه هم له خدایه مه غافله کېږئ اله خوانو ښځو، مالدارو خلکو او مبتدعینو سره ناسته پاسته مه کوئ ځکه چې دا خلک به مو په دین کې درته نقصان پیدا کړي، دا ستاسې د دین غله دي. که تاسې فکر وکړئ نو ځوک چې له چاسره زیاته رابطه او علاقه ساتي نو دهماغو خلکو اخلاق او عادت به پکې خای نیسي اودهغوی اعمال به پکې اثر پیدا کوي. نو حضرت غجدواني رحمه الله زامنو ته وایي چې: له دوی سره ناسته پاسته مه کوئ ځکه بې دیني او بداخلاقي به مو په برخه شي.

## د وخت ارزښت

حضرت عمرو بن عبدالله ؓ به یواځې پنځه وخته لمانځه او د جنازې لمانځه ته له کوره راوت ، نور وخت به یې دننه په کور کې تېراوه. چاورځخه پوښتنه وکړه چې: د باندې ولې نه راوځې ؟ ده

ورته وویل چې: ټول خلک غله دي، د سړي وخت ضائع کوي، په ټولو شیانو کې وخت قیمتي دی، کوم کور ته چې غل ورځي نو په هغه کور کې ترټولو قیمتي شی ګوري او ورسره یې وړي، نو عمر د انسان ترټولو شیانو قیمتي سرمایه ده، څکه په کروړونو روپۍ څوک مصرف کړي نو تېرې پنځه دقیقې نه شي راګرځولای. نو خلک ټول غله دي، وخت ضائع کوي نو څکه ورته نه راوځم.

## دصحابهٔ کرامو﷜ له خدای پاکﷻ نه د وېرې یوڅو نمونې

حضرت حنظله ﷜ له خپل کور څخه راووت، حضرت ابوبکر صدیق﷜ ورته وایي چې: حنظله ! څه حال ده ؟ دی مبارک ورته په ځواب کې وایي چې: زه خو منافق شوی یم، هغه ورته وویل چې: ولې ؟ ده ورته وویل: کله چې مونږ له حضرت رسول الله ﷺ سره په مجلس کې ناست یو، نو هغه ﷺ چې مونږ ته کوم نصیحت او وعظ کوي نو دومره مو یقین وربانديې راشي لکه جنت او جهنم چې په سترګو وینو، لکه خدای تعالی ﷻ چې بالمشاهده راته ښکاري. خو کله چې دده ﷺ له مجلس څخه راووځو نو له خپلو مېرمنو او اولادونو سره اوله نورو خلکو سره په دنیاوي معاملاتو کې مصروف شو. نودا خو منافقت ده.

حضرت ابوبکرصدیق﷜ ورته وویل : چې داکار خو په مونږ کې هم شته. دواړه یوځای حضرت نبي کریم ﷺ ته ورغلل او خپل مشکل

بې ورته وړاندې کړ حضرت حنظله حضرت نبي کریمﷺ ته وايي: چې حنظله خو منافق شوی. حضرت نبي کریمﷺ ورته وايي چې: ولې دی ﷺ ورته وايي چې: کله له تاسره په مجلس کې ناست یو نو حضور مو درجه د کمال کې وي، لکه جنت، جهنم او د الله تعالیﷻ ذات چې په خپلو سترګو وینو. خو چې کله ستا له مجلس څخه جدا شو نو بیا هرڅه راڅخه هېر وي.

حضرت نبي کریمﷺ ورته وايي چې: ای حنظله! که تاسې همېشه په دغه حال باندې پاتې وای لکه زما سره چې یاست او یا د ذکر په حلقه کې یاست نو بیا به ملائکو له تاسې سره ستاسې په فرشونو، بسترو، لارو او کوڅو کې په لاس سترې مشي کوله. خو (ساعةً و ساعةً) یو حال کله کله داسې وي چې د انسان له الله تعالیﷻ سره دومره علاقه پیدا شي، آخرت یې زړه ته دومره نږدې شي لکه په سترګو چې یېویني، خو کله کله بیاداسې حال وي چې د اولاد، مېرمنې او د ځان د خدمت وخت وي، په دې سره الله تعالیﷻ څوک نه نیسي.

که د مشائخو کرامو زندګي ته متوجه شو نو دهغوی خوف ډېر زیات دی، بل طرف ته د دین فیصلې ته که څوک وګوري چې په ژوند کې خو کله کله باید په سړي داسې کیفیت راشي چې د دنیا هرڅه یې هېر شي او یواځې آخرت ته متوجه شي. یو وار چې په یقین سره د چا زړه ته ولوېږي چې زه مړ کېږم بیابه په ټول ژوند ګناه ونه کړي، خو دغه قیمتي ساعت مونږ ته په لاس نه راځي. د حضرت نبي کریمﷺ د حدیث مبارک له مضمون څخه دا معلومېږي چې دا

ساعت زیاتره د مشائخو کرامو په مجلسونو اود ذِکر په حلقو کې وي. نو د مشائخو کرامو په صُحبت اود ذِکر په حلقه کې الله تعالی ﷻ کله کله انسان ته داسې حال پیدا کوي چې ( زُهد عن الدنیا ) یې په برخه شي یعنې له دنیا بېزاره او یواځې یې آخرت ته مخه شي. له دې وجې په کار ده چې وخت په غفلت کې تېر نه شي، په داسې محیط کې تېر نه شي چې هغه خلک له الله تعالیﷻ څخه غافله وي.

حضرت عبدالخالق غجدواني رحمه الله به دا نصبحت هم کاوه چې: د جاهلو صوفیانو له مجلس او ناستې پاستې نه هم ځان ساتئ ! هغوی به مو تول استعداد ختم کړي، ځکه دوی له ځانه صوفیتوب کوي او له دین څخه ناخبره دي. نو چې څومره مو له وسه پوره وي له نیکانو خلکو سره په مجلس کې شرکت کوئ ، د هغوی له ښو نصبحتونو څخه ګټه واخلئ، کله کله د پره ښه موقعه انسان ته په لاس ورځي او چې دغسې اثر پیدا شي نو تول کارونه به یې برابر وي.

یو مولوي صاحب قصه کوله چې: ما دا تجربه کړې چې: پخوا به کله د یوه استاد په مجلس کې کېناستم نو کله به یې په ما باندې نیم ساعت اثر و او کله یو ساعت. مطلب داچې آخرت ته به متوجه شوم اود دنیا تول خواهشات به مې له ذهن څخه ووتل. د مشائخو کرامو د مجلسونو هم ما تجربه کړې چې : کله به زه ددوی مجلس ته ورغلم نو کمِ از کم به تر دریو ورځو پورې په ما باندې دا ښه اثر و. که نه یوه جُمعه یا لس شپې خو به داسې اثر و چې د دنیا له

هرشي خخه به مې زړه موړ و او ټوله توجه به مې یواځې د الله تعالی ﷻ رضا اود آخرت په طرف وه.

نو چې په یوه مجلس کې یوه شپه ، درې شپې ، یوه جمعه د آخرت طرف ته توجه پیدا کېږي نو بیا خو د انسان شوق نور هم زیاتیږي او دغه صحبتونه اوپه هغو کې اشتراک نور هم زیاتیږي او په انسان کې الله تعالی ﷻ د اصلاح ماده پیدا کوي اود اصلاح توفیق یې په برخه کېږي. انشاء الله تعالی.

**وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا و سندنا و شفیعنا ومولانا محمدوعلی آله و اصحابه واتباعه و اهل بیته اجمعین**

  



# (۲۷) مجلس

## د حضرت شاه نقشبند (قدس سره) مناقب او د علم تصوف اصطلاحات

حضرت شاه نقشبند قدس سره چې دا طریقه ده ته منسو به ده او مسمی کیږي په طریقه نقشبندیه سره . مخکې تر پیدا ئښت دده حضرت محمد بابا سماسي قدس الله او حضرت امیر کلال بخاري قدس الله سره دادواړه په لاره تیریږي دحضرت شاه نقشبند صاحب په کلي چې ورځي نو حضرت بابایي سماسي چې دحضرت امیر کلال بخاري پیر ده هغه امیرکلال صاحب ته وایي چې د دغه کلي نه دیو ولي بوی راځي دلته یو داسې څوک پیدا کیږي چې خداوند متعال به ډیر غټ خد مت ددین ورنه واخلي مخکې دده تر پیدائښت دا خبره کوي .

اوبیا یو وخت کې بیرې راځي او ورته فر ما یي چې هغه خوش بويي دولي چې مخکې پته وه اوس راښکاره شوې ده خو حضرت بابا یي سماسي خپل خلیفه حضرت امیر کلال چې دشاه نقشبند صاحب پیر ده دغه ته وایي چې دا یو بچی چې نوی پیدا شوی ددغه په تر بیه کې به دومره کوشش کوې لکه څومره چې ما دتا په تر بیه کې

کوشش کړی ده او دته به خاص توجه کوې دده دادب او اخلاقو به ډېر خیال ساتې.

بیا چې کله حضرت شاه نقشبند قدس سره څه لو ییږي او وخت دذکر او بیعت ته رسیږي دحضرت امیر کلال بخاري قدس الله سره نه یې بیعت وکړچې بنا بر ظاهر ددغه علم باطني استاذ دده حضرت امیر کلال بخاري ، خو په اویسیت باندې ده د فیض استفاضه له عبدالخالق غجدوانی قدس الله سره څخه کوله. دی د اویسیي له قبیلې څخه و.

د تصوف په اصطلاح کې اویسیان یوه داسې خاصه طایفه ده چې مخکې له مخکې له یوه قبر یا یوه پیر سره دده دروح تعلق وي، دهغه د روح نه یې د فیض اکتساب کړی و، کله داسې وي چې بنا بر ظاهر هېڅ پیر ونه لري خو دی د اولیاوو الله وو له جملې څخه وي، ځکه ده روح د فیض اکتساب دهغه د روح نه کړی وي، دې ته اویسیه ویل کېږي.

## د حضرت شاه نقشبند قدس سره له خپل مرشد سره مقام او مرتبه

دغه شاه نقشبند قدس الله سره به چې کله د حضرت امیر کلال بخاري قدس الله سره مجلس ته حاضر شو نو په ټولو مریدانو کې به ده مبارک شاه نقشبند قدس سره ته ډېر التفات او توجه کوله، دده

رعایت یې ډېر کاوه، له شاه نقشبند مبارک نه مخکې په دغه طریقه کې دوه قسمه معمولات و، جهري ذکر به هم کېده او خُفیه ذکر به هم کېده، خو د حضرت عبدالخالق غجدوانی قدس الله سره نه چې حضرت شاه نقشبند په اویسه طریقه باندې د فیض اکتساب وکړ نو دهغه عادت ذِکر خفي و، کله چې به د ذِکر حلقه جوړه شوه، نو خفي ذکر به کېده، د حضرت امیر کلال بخاری قدس الله سره په مجلس کې به شاه نقشبند مبارک ناست و ذکر به یې ورسره کاوه، نو کله به چې جهري ذِکر شروع شو نو دی به له دغه مجلس څخه پورته شو. نو مریدانو خو طبعاً چې یو پیر له مُرید سره زیاته علاقه لري، یا یو استاد له کوم خپل شاګرد سره ډېره علاقه لري، یا پلار له کوم زوی سره ډېر تعلق وي نو په هغو نورو مریدانو، شاګردانو او زامنو بد اثر کوي.

نو په مریدانو باندې به دا خبره ډېره درنده وه چې دئ ولې له مجلس څخه پورته کېږي، سره له دې چې دی نوی مرید هم دی او حضرت امیر کلال بخاری دومره زیاته توجه هم ورته کوي، نو مریدانو ته د اعتراض ځای پیدا شو. نو حضرت امیر کلال بخاری رحمه الله ته یې وویل چې: حضرت! تاسې له نورو ټولو مریدانو دده ډېر رعایت کوئ! خو دی بیا هم له تاسې څخه مخالفت کوي. ته چې کله جهري ذِکر شروع کړې نو دی ستا له مجلس څخه وځي. حضرت امیر کلال بخاری قدس الله سره دوی ته هېڅ هم ونه ویل . خو یو وخت تقریباً پنځه سوه کسان په یوه مجلس کې ناست وو، بیا حضرت امیر کلال بخاري قدس سره ددوی د پوهولو له پاره

ورته وویل: ستاسې په زړه کې دا خبره راګرځي چې: له شاه نقشبند سره زما دومره زیات تعلق ولې ده ؟ ، سره له دې چې هغه په ځینو حلقو کې مخالفت هم کوي، نو حضرت امیر کلال د خبرو په منځ کې ورته وایي چې: دمخلوق نظر د خالق د نظر تابع وي، یعنې اولیاء الله د الله تعالیٰ ﷻ مخلوق دی نو په یوچاچې د خالق نظر وي نو دمخلوق نظر هم هغه طرف ته وراوړي. په حدیث شریف کې صراحة راځي: چې: زه د کامل ولي سترګې شم دی په ما باندې لیدل کوي . نو د ولي نظر تابع د الهي نظر وي. نو تاسې په ما باندې په دې باره کې کوم اعتراض مه کوئ ! ما معذور وګڼئ ! په شاه نقشبند چې د الله تعالیٰ ﷻ څومره نظر ده په دې مجلس کې په هیچا باندې دومره نشته. نو ځکه زه هم زیاته توجه ورته کوم، ځکه چې زما نظر د الله تعالیٰ ﷻ د نظر تابع ده.

## د حضرت شاه نقشبند قدس سره له خپل مُرشد سره ادب

په خپله حضرت شاه نقشبند مبارک له حضرت امیر کلال بخاري قدس الله سره څومره زیات ادب کاوه؟ یوه ورځ شاه نقشبند مبارک په دښته کې روان و، نو حضرت خضر ؑ په مخه ورغی او خضر ؑ په آس سپور و، د یوه کوچي په شکل کې یې ځان ورته ښکاره کړ، لکړه په لاس لکه تُرکی، ځکه په بخارا کې تُرکیان زیات اوسیږي. شاه نقشبند مبارک فرمایي چې: په لرګي یې چوخ کړم او په تُرکي ژبه یې راته وویل: زما آسونه ورک دي، تا خو به لیدلي نه

وي ؟ما ورته هېڅ ونه ويل. دغسې څو وارې په مخه راغی. آخر مې ورته وويل چې: زه دې پېژنم چې ته خضر ﷺ يې. دی فرمايي چې: دی راپسې او زه ورڅخه مخکې يم ، نو راته وايي چې کله مې پېژنې نو بيا خو يوڅه آرام آرام څه چې زه او ته خو يوڅه مجلس او صحبت سره وکړو. دی وايي چې: ما هېڅ التفات ورته نه کاوه. کله چې د امير کلال بخاري قدس سره مجلس ته ورسېدم نو هغه ته چې الله تعالی ﷻ فراست باطني ورکړی وو راته يې وويل چې: دحضرت خضر ﷺ سره دې په لاره وليدل ؟ما ورته وويل چې: هو ! صيب. ده راته وويل چې:تا خو ورته څه التفات نه کاوه ، دده ډېر خواهش و چې له تاسره مجلس او صحبت وکړي خو تا ورته ډېر التفات نه کاوه. نو حضرت شاه نقشبند مبارک خپل مرشد ته په خواب کې وويل چې: زه دخپل کور نه ستاسې د ليدلو په اراده راوتلی وم، نو هغه توجه او التفات چې له کوره د راوتلو په وخت مې ستاسې سره وه دهغې په مقابل کې حضرت خضر ﷺ هم هېڅ ده.

نو د هر سړي به په خپل شيخ کامل اعتماد وي، داسې کامل لکه د شاه نقشبند مبارک. په حضرت خضر ﷺ پسې دخلکو زړونه چوي چې کاشکې مې يو وار ليدلی وای، دعا مو ورنه غوښتې وای ، خو حضرت شاه نقشبند داسې نه چې له حضرت خضر ﷺ سره مخالفت لري، بلکې په خپل پير يې دومره زيات اعتماد دی چې زه له خپل کور څخه د خپل پير او مرشد په توجه راوتلی يم خو چې حضرت خضر ﷺ هرڅومره راته مخکې مخکې شي خو زه به ورته هېڅ التفات نه کوم.

## حضرت شاه نقشبند قدس سره ته د خپل مرشد له خوا د بل کامل مُرشد د پیدا کولو امر

بیا د همدې کامل ادب ثمره وه چې ده له خپل مرشد سره درلود. نو یو وخت یې خپل مرشد حضرت امیر کلال بخاري قدس سره راغواړي او ورته وايي: زه چې ستا هغه باطني استعداد او همت ته گورم نو هغه بې انتها او فوق العادة استعداد ده، له ماسره چې ستا څومره کار ترلی و د خپل پیر په فرموده . ما هغه ټول پای ته رسولی ده، خو ستا د خواهشاتو مُرغه نور پرواز هم غواړي . نو ته ولاړ شه او له مانه چې څوک پورته په لاس درغلل له هغه سره تعلق جوړ کړه . نو دی وايي چې: د شپې مې خوب لیده چې یو تُرکی درویش او ملنګ چې په تُرکي ژبه غږیږي، هغه په خوب کې راته څه خبرې وکړې . نو زما د زړه تعلق ورسره جوړشو. بیا ډېر وخت ورپسې گرځېدم چې یو وخت په لاره کې په مخه راغی او یواځې مې پوښتنه ورسره وکړه او د ځای معلومات مې ورڅخه وکړل، نورمجلس مې ورسره ونه کړ. وروسته زه خبر شوم چې هغه تُرکی درویش په خپل مُلک کې د بادشاهي مقام ته ورسېد، زه ورغلم، هلته دی سره له دې چې بادشاه و خو بیا یې هم خدای تعالی ﷻ ته دومره توجه وه چې هغه په نورو خلکو کې نه وه، نو په بادشاهي کې هم نفلونو ته پورته کېدو. او ما دورځې د نوکر په شکل په دروازه کې وخت تېراوه. خکه چې دی مې شیخ و اود فیض اکتساب مې

ورځخه کاوه اوپه شپه کې به مو بیا مقامات طی کول. ټول وخت مو په همدې طریقه تېراوه، چې قصه لنده کړو.

شاه نقشبند قدس سره په آخر کې وایي چې: ماته چې څومره په دغه طریقت کې معلومه شوه ، نو خدای پاک ﷻ ته درسېدو نژدې لاره داده چې سړی خپل اختیار ترک کړي اوخپلو ټولو اعمالو ته د قصور په نظر وګوري، د خدای پاک ﷻ د دین او د حضرت رسول الله ﷺ د ارشاداتو په مقابل کې به خپل اختیار ته هیڅ اعتبار نه ورکوي او هلته کمال ته زر رسیږي چې دخپلو اعمالو کمزوري او تقصیر ورته ښکاره شي چې ما دخدای پاک ﷻ له شان سره موافق عمل نه دی کړی ، څکه حضرت رسول الله ﷺ هم فرمایي : ﴿ لا احصی ثناءً علیك انت كما اثنیت علی نفسك ﴾ ای ربه ! ستا د شان سره لائق عبادت زه نه شم کولای.

حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په کعبه شریفه کې دوه رکعته لمونځ کوي، ټول قرآن کریم پکې تلاوت کوي ، بیا هم په کعبه شریفه کې خپل تقصیر وړاندې کوي او فرمایي: ﴿ الهي ما عرفناك حق معرفتك وما عبدناك حق عبادتك ﴾. ای خدایه پاکه ! ښه دې پېژنو چې ته مو خالق یې ، ته مو رازق یې خو ستا له شان سره لائق عبادت مونږ نه دی کړی.

څومره غټ غټ ائمهٔ کرام چې تېر شوي دي، د هر یو چې له الله تعالیٰ ﷻ سره څومره قرب په برخه شوی دی نو همدومره خپل ځان کم ورته ښکاري، څومره چې خدای پاک ﷻ ته محبوب کېږي، له

الله تعالی ﷻ سره يې رُتبه پورته کېږي نو دغومره دی له خپل ځان نه بر کناره کېږي ، خپل ځان ورته هيڅ هم نه ښکاري.

حضرت نبي کريم ﷺ به هم په دعا کې دا ويل چې: ( اللهم اجعلنی فی عینی صغیراً و فی اعین الناس کبیراً ) خدايه پاکه ! ماته خپل ځان په خپلو سترګو کې وړوکی راښکاره کړې او دنورو خلکو په سترګو کې مې عزتمن ولرې.

نو الله تعالی ﷻ ته د رسېدو ښه او لنډه لاره داده چې په هرځای کې به خپله اراده پرېږدي او له ډېر سره سره به خپل تقصير ته هم متوجه يې.

حضرت بايزيد بسطامي قدس سره الله تعالی ﷻ په خوب وليد . دی ورته وايي : ای خدايه پاکه ! تاته د رسېدو ترټولو آسانه او نژدې لاره کومه يوه ده ؟ نو الله تعالی ﷻ ورته په خواب کې وويل چې: خپل نفس پرېږده نو زما او ستا په منځ کې بل حاجب ( پرده ) نشته.

نو چې يوځوک داسې فکر وکړي چې په يو چا باندې نعمتونه ولورول شي نو فی الحال يې ځان ته پام شي چې زه خو ښه ملا يم، زه ښه مجاهد او صوفي يم. نو دغه نسبت د ( زه ښه يم ) چې ځان ته وشي نو ځان ورته غټ ښکاره شو نو نور مقامات يې ختمېږي، مخې ته نور حرکت نه شي کولای ، خدای پاک ﷻ ته د رسېدو لاره بندګي، عاجزي او فقيري ده. په ليلة المعراج کې د الله تعالی ﷻ بهترين صفت چې خپل خوږ پيغمبر ورباندې يادوي هغه د ( عبديت ) صفت ده. الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿ سُبۡحَـٰنَ ٱلَّذِیٓ أَسۡرَىٰ

بِعَبْدِهِ ﴾ هغه ذات لره پاکي ده چې خپل بنده يې بوت. نو په دې ځای کې مفسرين کرام فرمايي چې: د حضرت نبي کريمﷺ خو ډېر نومونه او صفات دي، په صفاتو کې يې الله تعالیٰﷻ په دې خاص ملاقات کې چې هغه د ﴿ قاب قوسين ﴾ مقام و په هغه کې يې دعبديت مقام ذکر کړ ، خدای پاکﷻ ته دمخلوق تر بندګي بل صفت مختار نه دی، عاجزي صفت مختار ده. ﴿ إِيَّاكَ نَعْبُدُ ﴾ غايت عاجزي تاته کوو، تاته تندی په ځمکه ږدو. نو الله تعالیٰﷻ ته درسېدو ښه لاره عاجزي ده اوچې سړی ته ځان غټ ښکاره شو نو بيا د عاجزي معنا ختمه شوه، بيا د الله تعالیٰﷻ له لوري د رحمت دروازې محدودې شي.

## د تصوف يو څه اصطلاحات

**هوش در دم**: هر انسان بايد په هره نَفَس کې نظر وکړي چې يوه ساه هم باسي بايد په غفلت کې تېره نه شي، ځکه دا د الله تعالیٰﷻ نعمت ده او د هغه د نعمت شُکرانه واجب ده..

**نظر بر قدم**: ظاهري معنا خو يې داده چې کله په لاره روان وي نو يو او بل طرف ته به نه ګوري، خو د تصوف په اصطلاح کې يې معنا داده چې : هر قدم په ځمکه ږدي داهم دخدای پاکﷻ يو نعمت ده چې په تا يې کړی دی، دومره ژوند يې درکړ بايد چې دا په غفلت کې تېر نه شي.

**خلوت درانجمن**: دا معنا چې په عام مجلس کې ناست يې خو په زړه کې دې اشنايي او تعلق له الله تعالی ﷻ سره وي، ظاهره به په دنيا او ددنيا په کارونو کې مصروف يې، له خلکو سره به په مجلس کې يې خو هلته دې زړه له الله تعالی ﷻ سره وي. ﴿ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللَّهِ ﴾ د الله تعالی ﷻ مقرب بندګان هغه دي چې بيعه او تجارت يې د الله تعالی ﷻ له ذکر نه نه غافله کوي.

حضرت مجدد قدس الله سره العظيم فرمايي:

*دردرون آشنا شو واز بيرون بيګانه شو　　اين چنين زيبا روش کم مي بود اندر جهان*

په زړه کې له الله تعالی ﷻ سره آشنا شه، په خدای پاک ﷻ عاشق شه او په ظاهره باندې چټ ګرځه چې خلک د صوفي ګمان هم درباندې ونه کړي، داسې ګرځه لکه پردی او نا آشنا ، چې خلک ډېر اعتماد درباندې ونه کړي.

**سفر دروطن:**

سفر دروطن دې ته وايي چې په خپل بدن کې د عالم امر او عالم خلق په تصفيه او تزکيه کې کوشش وکړي او له ذميمه اخلاقو څخه حميده اخلاقو ته انتقال وکړي.

**يادکرد:**

یاد کرد دې ته وایي چې: کله حضور وي او کله بې حضوري.

## یاد داشت:

یاد داشت دې ته وایي چې: حضور دائمي وي. یعنې په یاد کرد کې حضور په تکلیف سره پیدا کېږي او په یاد داشت کې حضور د ذاکر صفتِ راسخه وګرځي.

## وقوفِ زماني:

وقوف زماني دې ته وایي چې: صوفي همیشه له خپلو احوالو څخه خبر اوآګاه وي. چې آیا دده دا حال موجِب د شُکر ده او که موجب د معذرت ده. حضرت یعقوب چرخي قدس الله سره وایي چې: ماته حضرت شاه نقشنبد قدس الله سره د بسط په وخت کې دشکر اېستلو حکم کاوه اود قبض په حالت کې يې د استغفار کولو حُکم کاوه.

## وقوفِ عددي:

دې ته وایي چې: ذاکِر د نفی او اثبات په وخت کې د عدد یعنې شمېر رعایت کوي او ساه په طاق باسي. یعنې چې درې، پنځه آن تر یو ویشتو پورې.

**وقوفِ قلبي:**

دې ته وايي چې: ذاکر خپل زړه ته متوجه وي . کوم چې تر چپ تي دري ګوتې لاندې ده او همېشه يې په ذکر مشغول ساتي. او غفلت ته يې نه پرېږدي.

انسان چې ډېر خطا کېږي د خواهشاتو له امله تباه کېږي او ډېر خلک په ځان خبر هم نه وي او تباه برباد شوی وي ، داخپل نفس چې په صاحب صاحب ويلو ډېر قوي کړې چې څوک ورته پورته کېږي احترام يې کوي نو ده ته خپل ځان ډېر لوی ښکاره شي او معلومات ورته نه کېږي چې په باطن مې څه وشول.

سالک فرمايي:

میان عاشق و معشوق رمزیست کرام الکاتبین راهم خبر نیست

دعاشق او معشوقې ترمنځ داسې راز او نياز او داسې اشارات دي چې ملائکې سره له دې چې له انسان سره ناستې وي، ليکل کوي خو بيا هم په دې اشاراتو نه پوهېږي.

دا ذِکر خفي چې ډېر فضيلت لري وجه يې همدا ده چې هغه ملائکې هم په انسان علم نه لري، دقيامت په ورځ چې سوال او ځواب خلاص شي، بيا له ملائکو څخه الله تعالیٰ ﷻ پوښتنه کوي چې ددې انسان څومره اعمال و ؟ تاسې ټول راوړل ؟ ملائکې ورته وايي چې: هو اڅه چې يې کړي دي هغه ټول مو راوړي دي نور هېڅ نه دي

پاتې. نو الله تعالی ﷻ فرمایي چې: دده له ماسره یوداسې عمل ده چې زما نه سِوا بل څوک وربانديې خبر نه دي. دا هغه د ذِکر خفي دفتر ده. هلته الله تعالی ﷻ له ځان سره ساتلی وي. بیایې وړاندي کړي. این چنین زیبا روِش کم می بود اندر جهان.

ددغسې ښائسته کردار خلک په دنیا کې ډېر کم دي. چې په ظاهره چټ اوپه باطن کې اشنا اود خدای پاک ﷻ سره یې مینه وي خو بیا یې هم خلک له هېڅ نه خبر نه وي.

## په یو نېک شخص د الله پاک ﷻ امتحان

یو شخص په خلکو کې ډېر محبوب و، بل یو سړی په تجارت پسې روان و ، نو خپله لور یې راوستله اودغه سړي ته یې وویل چې: زما په کور کې بل څوک نشته، یواځې دغه پېغله لور مې ده ، په بل چا اعتماد نه لرم، ته ډېر غټ پیر او بزرګ یې، زما دا لور زما تر راتلو پورې به له تاسره وي او پام به ورباندې کوې.

کله چې دغه تاجر په سفر روان شو ، نو دلته شیطان هم خپل کوشش شروع کړ، چې دا نېک شخص له دې پېغلې سره په بدعملي اخته کړي ، پیر به هم ډېر زیات احتیاط کاوه، ځان یې ساته ، یو وخت دغه پېغله ویده ده ، شیطان یې مخ ورباندې لوڅ کړ اوددغه نېک انسان سترګې پرې ولګېدې ، بل وخت کې ویده

ده شیطان یې خبته ورباندې لوڅه کړه بیا ددې بزرګ سترګې ورباندې ولګېدې. نو طبعاً په دغه بزرګ هغه بشري صفات غالب شول او له الله تعالی ﷻ سره یې دتعلق سلسله کمزورې شوه، څکه په فتنه کې یې ځان واقع کړ. لکه چې حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي: چې که د یو چا چراګاه ته دې مېږې ورننژدې کړې آخر به درڅخه پکې ورګډې شي. خدای پاک ﷻ فرمایي: ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا ٱلزِّنَىٰٓ ﴾ نو هلته تعلق جوړ شو ، آخر دغه بزرګ په بدلمني او بدعملي ګرفتار شو.

بیا څه وخت وروسته خپل پیر او مرشد ته ورځي چې زه خو تباه شوم، له ما څخه کبیره ګناه وشوه، ددې به علاج څه وي؟ هغه ورته وایي چې: ته فلانکي کلي ته ولاړ شه، په هغه ځای کې یو بزرګ ده، ددې مرض علاج به درته وښیي. دی هغه علاقې ته ولاړ اودهغه سړي پوښتنه یې وکړه، نو هر چا ورباندې بد وویل چې: ته دومره ښه صوفي سړی یې . دا خو د رنډیو او بدکارو کلی ده، د بدعملو خلکو کلی ده، هغه سړی چې ته یې پوښتنه کوې یو لوی فاسق ده، هلکان او جینکۍ ساتي او شراب څښي، ته ولې دهغه پوښتنه کوې ؟

دی بېرته راوګرځېده، یوڅه ځای راغی، بېرته ور وګرځېده او له ځان سره یې وویل چې: یوځل خو یې خامخا وینم چې څرنګه سړی ده ؟ خلکو که هرڅه ورته ویل دی بیا هم هغه کور ته ورغی. کور ته چې کله ورننوت نو له ده سره یې ولیدل ، ورسره کېناست، دده په

یوه څنګ کې ښایسته هلک او په بل څنګ کې یې ښایسته نجلۍ ناسته دی، او ورسره شراب هم ایښي دي. نو ده وویل چې: خلکو خو رښتیا ویل چې: دی دا کارونه کوي.

خو کله چې خبرې شروع شوې نو په خبرو کې یې دومره زیات اثر و چې دی یې ښځي ناقراره کړ، نو آخر ورته عرض کوي چې: کله تاته الله تعالی ﷻ دومره غټ مقام هم درکړی ده نو داسې کارونه ولې کوې ؟ چې یو طرف ته دې هلک او بل طرف ته دې نجلۍ کښېنولې او هلته درته د شرابو بوتل ایښی دی. نو دغه بزرګ ورته وویل چې: دا هلک مې زوی ده اودا نجلۍ مې مینځه ده او په دغو بوتلونو کې سرکه ده او دا درې واړه روا (جائز) دي. دی ورته وایي چې: خلک خو په تا دا ګمان کوي چې دی هلکان او نجونې ساتي او شراب څښي. دی ورته وایي چې: دا مې ددې له پاره داسې کړي چې خلک خپلې لورګانې ماته پرې نه ږدي ( اشاره یې ده ته وه ) . دا ددې له پاره کوم چې خلک مې په بزرګي خطا نه شي او پر ما اعتماد ونه کړي. خپلې لورګانې راته پرې نه ږدي هسې نه چې زه په زنا کې ورسره واقع شم.

غټو مشائخو کرامو ټولو داسې کړي چې: شهرت یې د هر شوی نو بیا یې په یوه داسې رخصت عمل کړی چې د خلکو توجه ورڅخه واوړي ، اوهغه شهرت ختم شي.

حضرت انوارالمشائخ مرحوم خلیفه صاحب به ویل چې: [ شُهرت آفت ده ].

دا زمونږ په طریقه کې چهلې دېرې نشته، ځکه په دغو چهلو کې شهرت پیدا کېږي، او شهرت آفت ده، سړی تباه کېږي، کله چې یو شخص ته ګوته ونیول شوه چې دا فلانکی صاحب ده او خلک زیات اعتماد ورباندې وکړي، دی په ځان خبر هم نه وي خو نفس یې دومره غټ شوی وي چې بیا یې کنټرول مشکل وي.

نو (خلوت در انجمن) معنا داچې په مجلس کې دعامو خلکو سره په الفت محبت کې وخت تېروي خو په زړه کې یې تعلق له الله تعالی ﷻ سره وي او هغه تعلق ابدي تعلق وي.

**وقوف قلبي:** دا معنا چې انسان باید په خپل زړه باندې علم ولري چې زما زړه غافله ده که له الله تعالی ﷻ سره آشنا ده. اولیاؤالله چې د خپل زړه حالات بیانوي . څوک وايي چې: زه د زړه یو ساعت لحاظ کولای شم ، څوک وايي چې زه یې نیم ساعت کړای شم ، هغه دا معنا چې زړه دومره په کنټرول کې ده چې هلته وسوسه هم بالکل مداخله نه شي کولای.

د یو ساعت، یو سکنډ له پاره هلته شیطان مداخله نه شي کولای.

نوداچې په سړي کې دا مقامات پیدا شي چې ساه یې په غفلت نه وځي ، قدم په غفلت نه پورته کوي اوپه یوه مجلس کې هم دخدای پاک ﷻ له ذکر څخه نه غافلیږي، که د دنیا په هره جائزه معامله کې لګیا وي، خو زړه یې له الله تعالی ﷻ سره وي. لکه چې الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿ فَإِذَا قَضَيْتُمُ ٱلصَّلَوٰةَ فَٱذْكُرُوا ٱللَّهَ قِيَٰمًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ

جُنُوبِكُمْ ﴾ یعني لمونځ مو چې وکړ نو په ولاړې، ناستې او پرېوتا په ټولو وختونو کې ذکر کوئ. مفسرین کرام لیکي: دلته د الله تعالیٰ ﷻ مقصود او غوښتنه د ذِکر دوام ده، چې هر وخت به الله تعالیٰ ﷻ یادوئ! همیش یادول خو دا معنا نه چې په ژبه باندې به الله الله، سبحان الله سبحان الله یا الحمد لله وایي. بلکې معنا داچې زړه به دې یو آن او لحظه هم له الله تعالیٰ ﷻ نه غافل نه وي.

بیا چې دا آن موجود شو نو شاه نقشبند قدس سره فرمایي چې: چا رب تعالیٰ ﷻ وپېژانده معرفت قلبي ورته پیدا شو نو ﴿ لایخفی علیه شئ ﴾ بیا یو شی هم ورڅخه نه پټېږي. دغه کشف چې اولیاوالله ته کېږي دا ځکه چې الله تعالیٰ ﷻ په خپله فرمایي چې: زه بیا د خپل خاص بنده سترګې شم په ما باندې لیدل کوي، نوبیادغه انسان په دنیاوي اسبابو او عیشونو نه خطا کېږي، هغه بیا عشق ده، او عشق بیا یو اور ده، چې له محبوب نه ماسوا نور هرڅه سوځوي.

دچاپه زړه کې چې الهي سوز او عشق پیدا شو بیا نه ښځه او نه هم اولاد، نه اقارب اونه بل څه په نظر ورځي بلکې یواځې اویواځې الله تعالیٰ ﷻ اوحضرت نبي کریم ﷺ یې محبوب شي. بیا هغه زړه د الهي نور مظهر وګرځي.

نو دې ته لږ سوچ په کار ده چې د زړه شیشه پاکه شي. کله چې د زړه شیشه پاکه شي نو بیا یې رڼا هم دغومره زیاته وي.

د لمر شعاعو ته چې ورکې شیشه ونیسې نوپه دېوال باندې وړکي وړانګه غورځوي، خو که غټه شیشه وي او خیرنه وي ، مطلب داچې د استعداد خبره ده، که هرڅومره غټ وي خو چې شیشه بې صفا نه وي نو د لمر هغه رڼا نه شي منعکس کولای، خو چې شیشه غټه وي او د صفایي کوشش هم ورسره کېږي نو چې څومره صفایي زیاتیږي همدومره یې رڼا هم زیاتیږي ، اوهلته یې نور خلکو ته هم فائده رسېدل شروع شي. بیا د خدای پاک ﷻ د انوارو شعاع ددې انسان له سینې نه د بل انسان سینې ته ورځي.

## ایا په جذب اودس ماتیږي اوکنه ؟

د جذب متعلق بیان مخکې تېر شو . اوس به دا خبره واضحه کړو چې په جذب سره اودس ماتیږي که نه ؟

دا جذب چې چاته پیدا کېږي دا یو داسې کیفیت ده چې د انسان حواس کار نه پرېږدي ، داسې نه وي لکه ویده اویا بې هوښه چې په ځان باندې نه پوهېږي. په ځان ښه پوهېږي خو ځان اداره کولای نه شي.

حضرت مولانا شیرعلي شاه مدني صاحب قیصه کوله چې: زه د طالبانو د تحریک په وخت کې دافغانستان هرات ولایت ته تللی وم، هلته د (خواجه غلطان ولي) په نامه یو زیارت دی، چې ډېرو علماوو او طالبانو تجربه هم وربانديې کړې. عام خلک داسې وایي

چې: داسې یو لوړ ځای ده، چې یو اړخ دې ځان واړاوه نو په دوهم اړخ کې بیا ځان نه شې اداره کولای، د غونډۍ تر بېخه پورې چې رغښتی نه یې نو ځان نه شې تم کولای. ښه په ځان پوهېږي ، ویښ یې. نو په جذب کې هم دغسې یو کیفیت وي. د سړي عقل په ځای وي ، سترګې او وجود یې کار کوي نو لنډه داچې د جذب په حالت کې عقل او هوش پوره کار کوي یواځې د ځان د کنټرول خبره ده، نو په جذب سره اودس نه ماتیږي.

فیض الله خلیفه صاحب ویل چې: په ما باندې به د حضرت صاحب مبارک په مجلس کې ډېر جذب راتلو، نو یو وخت کې یو عالم راته وویل چې: تاته څه کیفیت پېښیږي ؟ چې داسې پورته پورته غورځې؟ ما ورته وویل چې: نور خو نه پوهېږم خو کله چې ذکر شروع شي، نو زما د زړه د برابرې نه نیولې آن تر زنې پورې په دې منځ کې د نور یوه شیشه راشي، داشیشه مې پورته کوي او په ځمکه مې ولي. ښه په ځان پوهېږم، خو ځان نه شم تم کولای. نو په دې سره اودس نه ماتیږي. دې ته متوجه شئ اعتراض او اشتباه دې څوک ځان ته نه پیدا کوي اونه دې په بل چا باندې رد کوي.

دا د هرچا خپلې برخې دي، داچې څوک څه کوي او څه وینې؟ د دې لیدلو حال خو هرچاته څوک نه شي ویلای. دا خو پټ اسرار دي.

منصور حلاج حال ووایه ، آخر په دار وځړول شو. هر چاته حال ویل ناروا دي. یواځې به خپل مرشد او یا مرشد خپلو خصوصي مریدانو ته به حالات بیانوي، چې هغه ښه معتقد خلک وي.

منصور حلاج چې کله په دار وځړول شو، نو یو سړي ټوله شپه په ژړا او غم کې تېره کړه چې: ای خدایه! دا منصور خو ستا دوست او ولي و، ستا مقرب بنده و او تا ورته داسې سزا ورکړه چې په دار وځړول شو. نو همدا سړی بیا خوب ویني چې الله تعالیٰ ﷻ همدغه شخص ته وایي: منصور ته ما خپل راز ویلی و او ده هغه راز پټ نه ساته، ځکه مې دا سزا ورکړه. د بادشاه راز چې څوک پټ نه شي ساتلی دهغه به همدا سزا وي.

حضرت شاه نقشبند قدس الله سره هم وایي: دوه ځله په ما باندې هم داسې مقام راغلی چې نژدې وه زه هم د منصور حلاج غوندې دعوه وکړم چې: (انا الحق) خو زمونږ په علاقه کې د پانسي (دار) دوه ځایونه و، نو هلته به ورغلم او خپل نفس ته به مې ویل چې: که دا دعوه دې وکړه نو ستا به هم دغه سزا وي. ته به هم د منصور په شان په دار وځړول شې. خو د الله تعالیٰ ﷻ رحم او کرم اود حضرت خواجه عبدالخالق غجدواني قدس سره فیوضات راباندې راغلل او له دې مقام څخه بې واړولم.

شاه نقشبند مبارک قسم کوي چې کله منصور حلاج په دار کېده که هلته دخواجه عبدالخالق غجدواني یو خلیفه هم موجود وای نو منصور به چا نه وای په دار کړی او دی به یې له دغه مقام څخه اړولی وای.

نو دا مقامات او اسرار چې چاته په نصیب کېږي نو هرچاته خو یې څوک نه شي بیانولای، نو اعتراضونه دې څوک نه کوي. (المرء

يقيس على نفسه ) هر سړی په خپل ځان قياس کوي چې زه خو دا شي نه وينم نو دا شي نشته. دا په سلګونو کتابونه العياذبالله په دړواغو نه دي جوړ شوي. زه به يې نه وينم، نو زما د نه ليدلو له وجې خو د هغه شي نيستي لازمه نه شوه. دا د باطن شيشې دي، صفايي غواړي، د چا چې څومره استعداد وي دغومره شی ورته معلوميږي ، نو اعتراضونه بايد په دې رابطه ونه کړل شي. دا ټولې خبرې ثبوت لري.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا ومولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين

الله الله الله

# (۲۸) مجلس

## دحضرت امام اعظم ابوحنیفه (رحمة الله علیه) مناقب

یو خلیفه صاحب ماته قیصه کوله، ده له بل خلیفه صاحب نه حکایت کاوه چې په یوه کور کې په یوه ځای کې کېناستم نو ګورم چې په تاخچه کې څه انوار پورته کېږي، نو فی الحال ورپورته شوم چې یو زوړ کتاب ده، کله چې مې راواخیست نو هغه د امام ربانی صاحب قدس سره مکتوبات شریف ده، زوړ کتاب و، خو د کور څښتن ته یې قدر معلوم نه و، نه یې پېژانده. د کور څښتن ویل چې دلته کوم مُلا ایښی ده، خو هغه خلیفه صاحب د فراست څښتن و، هغه ته معلومات وشو.

نو د هرچا د کتاب چې څوک مطالعه کوي نو له هغه سره یې تعلق او محبت پیدا کېږي او څومره چې تعلق او محبت پیدا کېږي دغومره دهغه انسان طرف ته فیوضات پیدا کېږي.

## دامام اعظم ابوحنیفه (رحمة الله علیه) احوال

د یو چا په باب علمي معلومات چې سړی پیدا کړي نودا ډېر ضروري شی ده، بیا خاصکر د طالبانو له پاره. مونږ د مذهب په

سلسله کې د امام صاحب پیروان یو ، خو که دهمدغه امام صاحب د علمي خدمتونو او نورو کراماتو او علمي مقام په باره کې څوک رانه پوښتنه وکړي نو مونږ طالبانو ته بیا په دې باره کې هیڅ معلومات نه وي. همدارنګه مونږ د نقشبندیې طریقې پیروان یو، خو که له مونږ څخه یو څوک د شاه نقشبند، یا امام مجدد الف ثاني (قدس الله سرهم ) په باره کې پوښتنه وکړي، دهغوی معلومات له مونږ څخه وغواړي، یا د حضراتو مبارکانو په باره کې معلومات وغواړي نو مونږ یې په خواب کې هیڅ هم نه لرو.

خبره چې مستنده ګرځي دا هلته چې له مونږ سره علمي معلومات هم وي، له دې سره شوق هم زیاتیږي. حضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله تعالی چې مونږ یې په مذهب یو؛ په ( ۸۰ ) هجري کال کې پیدا شوی اوپه (۱۵۰) یا (۱۵۱) یا (۱۵۲) هجري کې وفات شوی. مشهور قول داده چې په (۱۵۰) هجري کې وفات شوی ده. دی په خیرالقرون کې د تابعینو په مقام کې ده. په یو روایت کې راځي چې څلور صحابۀ کرام﷜ یې لیدلي او بل روایت کې راځي چې اته صحابۀ کرام﷜ یې لیدلي دي. دامام صاحب لمسی دده په باب کې وایي چې: کله امام صاحب پیدا شو نو خپل پلار حضرت ثابت رحمه الله حضرت علي﷜ ته ورووړ او حضرت علي﷜ هم ده ته او هم دغه ماشوم [ امام صاحب ] ته دخیر او برکت دعا وکړه، نو دهغې بابرکتې دعا اثر ده چې الله تعالیﷻ دده په اولاده کې دا د علم سلسله جاري کړه.

حضرت امام صاحب په فقهه کې دومره ژور معلومات لري چې دده په باره کې حضرت امام شافعي رحمه الله فرمايي: (الناس عيال ابى حنيفة فى الفقه) په فقهه کې ټول خلک د امام صاحب عيال دي.

## امام شافعي (رحمه الله) به دامام صاحب په زيارت کې خپل مذهب پريښود

حضرت امام شافعي د امام صاحب د وفات په کال پيدا شوی. د امام شافعي رحمه الله مسلک داده چې د سهار په لمانځه کې دعاء قنوت وايي او چې رکوع ته خي په همدغه وخت کې لاسونه پورته کوي او چې کله له رکوع نه راپورته کېږي نو هم لاسونه پورته کوي، خوپووخت همدا امام شافعي رحمه الله د امام صاحب زيارت ته راغی، نوچې د سهار لمونځ يې کاوه نو نه يې دعاء قنوت د سهار په لمانځه کې ووېله اونه يې په رکوع کې غوړونو ته لاسونه پورته کړل. نو چا ورځخه پوښتنه وکړه چې داسې دې ولې وکړل ؟ چې خپل مذهب دې پرېښود. دی په ځواب کې ورته وايي چې: ددې قبر له څښتن ځخه حيا راځي، ددې قبر څښتن يو جليل القدر انسان ده، دا به له ده سره بې ادبي وي چې دده په حضور کې دده د مذهب مخالف عمل څوک وکړي. سره له دې چې امام شافعي رحمه الله د مستقل مذهب مؤسس او څښتن ده خو دحضرت سيدنا امام اعظم صاحب سره دومره عقيدت او احترام لري چې کله يې علاقې ته

راغی نو خپل مذهب یې ورته پرېښود اود امام صاحب په مذهب یې عمل وکړ.

له دې ځای نه سړي ته دهر غټ معلومات په لاس ورځي. یو داچې زیارت ته تګ ثابت شو ځکه ټول ائمهٔ کرام زیارتونو ته تلل، له دې سره سره د قبر آداب هم ثابت شول ځکه امام شافعي رحمه الله دومره ادب ورسره کوي، سره له دې چې بالذات شاګرد یې هم نه ده، بلکې بالواسطه یې شاګرد ده، دی د حضرت امام محمد صاحب شاګرد ده، نو امام شافعي صاحب دومره ادب کوي چې د امام صاحب له قبر سره یې دخپل مذهب معمولات پرېښودل اود امام صاحب په مذهب یې عمل وکړ.

**واخرنا دعوانا ان الحمد لله رب العالمین**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا محمد وعلی آله و اصحابه اجمعین**

# (۲۹) مجلس

## د حضرت رسول الله ﷺ سره محبت کول

قال رسول الله ﷺ لایؤمن احدکم حتی اکون احب الیه من وَ

الده وولده والنّاس اجـمعین

حضرت رسول الله ﷺ فرمایي چې له تاسو نه څوک کامل مؤمن نه شي ګرځیدلی چې ترڅوزه ده ته ترخپل مور اوپلار اوترټولو خلکونه یم محبوب شوی ،نه یم ګران شوی.

اوس له حضرت نبي کریم ﷺ سره دامحبت چې ترخپلو مورا وپلار اوترټولو خلکو به زیات محبوب وي داکوم قسم محبت ده؟

عام کتابونه لیکي: چې طبعي محبت چې دانسان په وس کې نشته، دخپل خان دخپل اولاد یادمور اوپلار سره طبعي محبت ده. له رسول اللهﷺ سره طبعي محبت نه ده مراد. څکه داسې خود برکم خلک پیداکیږي چې ده ته تر خپل ځان مور اوپلار اواولاد ترټولو خلکو رسول الله ﷺ ګران وي نومراد ورنه محبت عقلي اوایماني دی.

یعنې دامحبت دامعنا چې دسړي به دحضرت رسول الله ﷺ سره دومره مینه وي چې ترخپلو خواهشاتو اودخپل مور اوپلار ترخواهشاتو دخپل اولاد ترخواهشاتو ، د ملکرو او حکومت بلکې دهرچاله خواهشاتو اوارزوګانو به، ده ته دحضرت نبي کریم ﷺ ارزو قدرمنه وي، حتی دسړي خپل نفس غواړي چې بدکاري وکړي خودحضرت نبي کریم ﷺ امر داده چې نه به یې کوي،داسړی به کامل مؤمن هلته وي چې خپل خواهش پریږدي اودحضرت نبي کریم ﷺ په امر باندې عمل وکړي.

دسړي موراوپلار ،دسړي نه یوڅه غواړي اودحضرت نبي کریم ﷺ حکم بل څه وي نوداسړی به هلته دکامل ایمان څښتن کیږي چې دخپل موراوپلار اوخپل اولاد خبره،دخپلې ښځې خبره،دحکومت اوملګري خبره تولې یې شاته وغورځولي،خو په امر دحضرت نبي کریم ﷺ باندې یې عمل وکړدادانسان په وس کې شته ،اختیاري دی.

نو انسان هلته کامل مؤمن ګرځي چې دی د حضرت نبي کریم ﷺ اوامر اونواهي ،هغه ته ترخپل ځان،مور اوپلار تولونه مخکې کړي ،له دې وجې نه دغه انسان چې دنفس مقابله کوي دمور اوپلار اواولاد مقابله کوي،پده به قسم قسم دخواهشاتوبه تقاضا ،تکلیفونه راځي خوچې په چاکې کمال دایمان ؤ نوداتول تکلیفونه ورته اسانه کیږي ،هغه بیا برداشت کولای شي، داوداسه په کولو کې،دلمانځه په کولوکې ، دروژې په نیولو کې ،دحج په کولوکې، دجهاد په کولوکې الغرض په تولو کې انسان ته تکلیفونه وي،

خوچې چادحضرت نبي کریم ﷺ سره مینه پیداشوه، نوداتکلیفونه ټول ورته اسانه کیږي، بیاپه طاعت اوعبادت باندې خونداخلي، حتی چې دصحابه کرامو په وخت کې داسې پیښنه وه ،بلکې په اوس وخت کې هم خلک شته چې دیوانسان پلار خدانخواسته په کفرکې وي اودشریعت حکم جهاد ورته متوجې شو،چې ته به جهادورسره کوې،نوداانسان به هلته کامل مؤمن وي چې دخپل پلار اواولاد هیڅ پروا ونلري اوجنګ اوجهاد اخیروژلوته یې تیارشي، خود حضرت نبي کریم ﷺ حکم نه ماتوي.

حتی خپل ځان قرباني ته تیارکړي،سخت تکلیفونه خوهلته چې دشریعت حکم ده،له خپل ځان څخه ورته دحضرت نبي کریم ﷺ حکم محبوب دی، دهغه ارزو ورته ګرانه شي، نودخپل ځان څخه تیرشي اومرګ قبول کړي ،خودهغه حکم نه ماتوي ،دخدای پاک ﷻ حکم نه ماتوي، دغه مرتبه دکمال دایمان دی.

دصحابه کرامو دغه محبت اتم ؤ ځکه ددوی اطاعت هم ډېرؤ ،ولې چې ترټولوخلکو نه ددوی محبت زیات ؤ،ددوی معرفت اتم ؤ ،دوی چې رسول الله ﷺ په کوم معرفت پیژانده، نوروخلک چې دصحابه کرامونه چې راشاته دي هغوی ته داسې معرفت نه وحاصل،ددوی علم د حضرت نبي کریم ﷺ په حال باندې علم شهودي ؤپه سترګویې حالات لیدل،دحضرت رسول الله ﷺ معجزې یې لیدلې، دنزول حالات یې لیدل،نوددوی معرفت زیات ؤ دحضرت رسول الله ﷺ هستي اوغټ توب یې دی ډېرپېژانده،ځکه ددوی دحضرت رسول الله ﷺ سره دغومره ډېره مینه وه.

حضرت عمر ﷛ رسول الله ﷺ ته وايي ماته ترتولوله پلار اواولاد اونوروتولوخلکونه ګران يي، «الامن نفسي» مګرله خپل ځان څخه ته نه يې راګران.

حضرت رسول الله ﷺ ورته وويل چې والله که ته ترهغه پورې کامل مؤمن شي چې ترځوله ځان څخه زه نه يم درته ګران شوی.

حضرت عمر﷛ ورته وايي چې يو وار داسې خبره وي نووالله اوس ماته ترخپل ځان هم ګران يي.

څکه دوی د حضرت نبي کريم ﷺ عظمت ډېرپېژانده، له دغې وجې نه چې دخدای پاک ﷻ له طرف نه دآدب حکمونه صحابه کراموته نازل شول چې تاسې دحضرت نبي کريم ﷺ په حضور کې په زوره زوره غږيدا مه کوئ،په ټولو صحابه کراموکې درسول الله ﷺ قدراوعزت حضرت ابوبکر صديق ﷛ اوحضرت عمر فاروق ﷛ ډېرپېژانده، دوی به ددغه آيت نه وروسته دحضرت نبي کريم ﷺ په مجلس کې داسې په آدب غږيدل لکه يوځوک چې چاته پټه خبرکوي،حتی دوهم وارې به ورته وويل شول چې څه وايئ،د رسول الله ﷺ هم له دوی سره بې اندازې محبت اومينه وه،يوځل رسول الله ﷺ په مسجد کې روان ؛نوحضرت ابوبکر صديق ﷛ ته يې يولاس په لاس کې ورکړی اوحضرت عمرفاروق ﷛ ته يې بل لاس په لاس کې ورکړی اوورته وايي چې : مونږبه دقبرنه هم يوځای راپورته کيږو اودحشرپه ميدان به هم يوځای ګرځو؛خوسره له دومره نژديکت اوشفقت سره بياهم دومره چې دوی داريدل ،نورصحابه کرام د دوی په شان نه داريدل.

دحضرت ذوالیدین ﷺ مشهور حدیث دی ، یووخت حضرت نبي کریم ﷺ په څلورر کعتیزلمانځه کې سهوه شواودوه رکعته لمونځ یې وکړ، دحضرت ابوبکر صدیق ﷺ اوحضرت عمر فاروق ﷺ په شمول دېر نورصحابه کرامو هم موجود ول ،حضرت ذوالیدین ﷺ راغی حضرت رسول الله ﷺ ته وایې یارسول الله ! لمونځ لنډ شو اوکه له تاهیرشو؟

حضرت رسول الله ﷺ ورته وایې چې یوهم نه دی شوی. دی ورته وایي چې نه صاحب ! څه خو شوي،لمونځ دې کم وکړ،رسول الله ﷺ له نوروصحابه کرامو ﷺ څخه یې پوښتنه وکړه چې همداسې لکه چې ذوالیدین ﷺ چې وایې ؟ نوروصحابه کرامو ﷺ ورته وویل هو! لمونځ دوه رکعته شو.

نورسول الله ﷺ دوه رکعته نور وروسې وکړ.

دلته محدثین کرام لیکي چې په دغوخلکوکې حضرت ابوبکر اوحضرت عمرفاروق رضی الله تعالی عنهما موجود ؤ اوپه دې غلطې باندې پوه هم شول چې لمونځ دوه رکعته وشوو؛خودوی څه ونه ویل،دا ولې؟

جواب داکوي چې ددوی دواړو له حضرت نبي کریم ﷺ سره بې انتهازیات محبت ؤ دهغه هیبت یې په زړه کې موجودؤ ؛نودوی ددې جرئت نه شوای کولای چې دوی په دې هکله له رسول الله ﷺ سره خبرې وکړي.

نوڅومره چې څوک دېر پیژني همدومره دده په زړه کې دهغه محبت زیات پیدا کیږي، همدومره دهغه نه خوف اوویره پیدا کیږي.

لکه چې علماء کراموته د الله تعالی ﷻ معرفت زیات حاصل دی ځکه دوی له خدای پاک ﷻ نه ډېر زیات ویرېږي.

دصحابه کرامو چې له رسول الله ﷺ سره مینه ډېرتامه وه،وجه داوه چې دی یې ډېر ښه پېژانده.

نوهلته کمال ته رسیږي چې کله دده له حضرت رسول الله ﷺ سره له هرچانه محبت زیات شي.

دمحبت بحث ډېرزیات دراز دی زه به یې دلته یوڅه په اختصار سره راوړم.

## دمحبت علامات

نودمحبت علامه دادی چې څوک وایې زما له حضرت رسول الله ﷺ سره محبت دی، په دې دعوه کې به دی هلته رښتونی وي چې دی دحضرت رسول الله ﷺ په سنتو باندې ځان برابرکړي،که څوک له رسول الله ﷺ سره دمحبت دعوه لري اوبه سنتوېې عمل نه کوي،په سنتوېې ځان نه برابروي؛نودی په دې دعوه کې دروغجن دی، ځکه چاته چې څوک خوندورکوي ؛نودهغه جامه اولباس هم خوندورکوي، دهغه عادات اوخویونه هم خوندورکوي اوداټول په تمامه معناپه ځان کې راولي.

لکه څوک چې دم ته کینې نوورته وایې چې ماته انګریزي وېښته راجوړکړه،څوک وایې ماته تبلیغي وېښته راجوړ کړه، داولې وایې ځکه چې ده ته دهغوی لباس اوعادات خوند ورکوي ؛

نودچاچې له چاسره مینه وي ،کوشش کوي چې دهغه خوی ،عادات اواخلاق په ځان کې راولي.

دخدای پاک ﷻ سره دمحبت علامه داده چې دسړي دقران عظیم الشان سره ډېره مینه وي، اوکه دحضرت رسول الله ﷺ سره محبت وي ؛نودحضرت رسول الله ﷺ له سنتوسره یې محبت وي.

هرولي چې دولایت مقام ته رسیږي نوهغه دحضرت رسول الله ﷺ په متابعت باندې رسیږي ، چې څومره ډېرمتابعت ؤ همدومره دهغه ولي مقام لوړیږي.

حضرت مجددالف ثاني شیخ احمد سرهندي قدس الله سره ،چې په طریقت کې یولوی عظیم الشان شخصیت تېرشوی دی ،دده نه څوک پوښتنه کوي چې دادومره غټ منصب خداوندمتعال په څه درکړ؟

دی ورته وایې چې دحضرت رسول الله ﷺ په متابعت .

دی مبارک وایې چې یووخت کې زه په ځای کې په چپ اړخ څملاستم؛نوپه ماباندې چې کوم فیوضات راتلل ،هغه بندشول، زه پوه شوم چې مادسنتوخلاف عمل وکړ؛خوداسې هم نه چې په ځای کې په ښي اړخ واوړم،ماویل چې بې ادبي دې وکړه، بیرته ولاړ شوم اوبیا کیناستم اوبیا په ښي اړخ باندې څملاستم ،چې دسنتو متابعت په کامله توګه راشي؛نودخداوندمتعال له خوادسې فیوضات راباندې راخلاص شول چې ډېروخت مې نه وو لیدلي.

کتابونه لیکي چې یوواړه سنت ،لکه دبیت الخلا ته دننوتلو په وخت کې چپه پښه مخته کړي اود راوتلو په وخت کې ښي پښه

رامخته کړي ،ددغې وا ړه سنت ژوندي کول تریولوی حسنه بدعت نه،لکه مدرسه جوړول، هم ډېر زیات ثواب لري.

سره له دې چې مدرسه حسنه بدعت دی ،خومره غټ کاروند پکې کیږي خودغه سنت چې دخلکو ترپامه یوعادي شی ورځي ،ددغه ثواب وربانډې ډېر زیات دی.

په حدیث شریف کې راځي چې دیوه سنت ژوندي کول،په وخت دفساد دامت کې دسلو شهیدانو اجر لري، ځکه دین په سنتو ژوندی دی، دین دحضرت رسول الله ﷺ په سنتو ژوندی دی ،که سړی بزرګي کوي اودشریعت موافق نه وي، نوکله دهغه اخري خاتمه خرابه شي اوکافر اوزندیق شي.

نوموږ اوتاسو که داغواړو چې په دیني امورو کې دې زمونږ ترقي وشي،دخدای پاک ﷻ اوحضرت رسول الله ﷺ سره مودې نږدیکت پیداشي ؛نوباید داکوشش وکړو چې دشریعت په چوکاټ کې باید ځان برابر کړو اوامریه ځای کول ،دګناهونوځخه ځان ساتل،ځان په سنتوبرابرول.

نوچې دحضرت رسول الله ﷺ سره څوک مېنه لري نوچې په خوب کې یې لیدلی وي هغه څېره دې وربه زړه کوي،که یې نوي لیدلی اوحج ته تللی وي نو دروضې مطهرې څېره دې وربه زړه کوي، که نوې نودرود شریف دې په داسې اخلاص سره وای چې لکه د حضرت نبي کریم ﷺ په حضور کې مخامخ چې ناست وي اوهغه یې په سترګو ویني،کله چې دسړي دومره ادب اوعقیده پیداشوه، دسنتو اوشریعت پابندشو ،شوق اواخلاص پیداشو؛نوبیا خداوند

متعال په یوه واړه عمل سره انسان ته دومره درجې ورجیګه وي چې بل یې په کلنو کلنو کوي دهغه دومره درجې نه جګیږي، یوسړی به په کالو کالو لګیاوي دهغه عبادت به یې ثواب وي لکن رتبه به یې نه جګیږي، یعنې قرب به نه ورته پیداکیږي اویوڅوک چې یو واړې داخلاص ماده پکې موجوده شوه،سینه صفا شوه،محبت موجود شو، دهغه بیا داسې رتبې جګیږي لکه ددنیا دصاحب منصبانو چې رتبې جګیږي، هغه بیا په واړه عمل خداوند متعال ته دومره نږدې کیږي چې نور خلک په ډیرعملونو دې مرتبې ته نه رسیږي ، لکه داحدیث موبارېار ذکر کړی دی چې حضرت رسول الله ﷺ وایې چې په صحابه کرامو پسې بدمه وایې ،که تاسو دغره په اندازه زر چنده صدقې وکړې ،دهغوی دیوپاؤ یانیم پاؤ صدقې ته هم نه رسیږي.

ځکه په هغوکې اخلاص ،صداقت اومحبت موجودۇ،کاریې ریښتونې ۇ ددوی دحضرت رسول الله ﷺ سره بې انتهازیات محبت ۇ،حضرت صدیق اکبر ﷺ ټول جایداد په حضرت رسول الله ﷺ باندې قربان کړې، حتی دومره دصحابه کرامو ورسره محبت ۇ چې کله به دده له مجلس نه جدا شول نوګوښې به خوراک اوڅښاک خوند نه ورکاوه، منډې به یې وهلې اودحضرت رسول الله ﷺ مجلس ته به یې ځان رساوه.

حتی صحابي مبارک دکفاروپه لاس کې بندې ده ،دپانسی حالت ده ،کفار ورته وایې چې تاته دا محبوبه ده چې ته خلاص وای اوبه خپل کورکې وای اورسول الله ﷺ مودتاپه ځای نیولی وای او پانسی کړی موواې؟ پدغه به ته راضي وې؟ دی ورته وایې چې

داخوځه کوئ چې زماپه ځای دې هغه پانسی وای، والله چې دی هلته په کورکې وي دده په ښنه کې اغزی ولاړ شي هم که ماته دامحبوبه وي.

سبحان الله! رسول الله ﷺ څومره په دوی ګران ؤ.

دده دوفات نه وروسته چې دی ددنیا نه انتقال شو چې داغږ په ټوله علاقه خپورشو چې رسول الله ﷺ ددنیانه رحلت وکړ، حضرت عمرفاروق ؓ غوندې شخص چې څومره غټ علم اوقوي استعداد خداوندمتعال ورکړی ؤ خودومره محبت یې اتم ؤ چې دهغه حواس کارپرېښود، توره یې راویستله چې که چا داغږ وکړچې رسول الله ﷺ وفات شو، زه به سر ورنه کاټ کړم.

ډېر صحابه کرام په نفس غږ اوریدلو لیونیان شول، عقلونو به یې کارپرېښود، حضرت عبدالله بن زید ؓ په باغ کې ؤ چې خبر شو چې حضرت رسول الله ﷺ وفات شو؛نوهلته خدای پاک ﷻ ته دعاکوي چې ای خدایه! چې زما دسترګو سړ والی خودحضرت نبي کریم ﷺ په دیدار کې ؤ اوس چې هغه ولاړ؛نورې مې سترګې ړندې کړې چې په نورچامې سترګې ونه لګیږي. په هغه ځای یې خدای دعاقبوله کړه اوسترګې یې ړندې شوې.

په احد کې چې کله جنګ شروع شو یوصحابي مبارک درسول الله ﷺ مخې ته ودریده اوځان یې ډال کړترڅوپه رسول الله ﷺ باندې دغشي،تورې یا نیزې وار ونه لګیږي ،نوداصحابي مبارک (۷۲)ځایه زخمي شو.

دیوې ښځې په احد کې دخپلې کورنۍ پلار، میړه اوورور درې واړه شهیدان شوې دي ،خوچې کله دامخته راځې اورسول الله ﷺ نه وینې ؛نواول له هرڅه نه درسول الله پوښتنه کوي چې رسول الله سنګه دی؟ چاورته وویل چې دتاپلار، میړه او ورور شهیدان شوي دي دا ورته وایې چې هرغم وروسته له رسول الله ﷺ نه ماته اسانه دی.

دېته واقعې عشق وایې ،چې خپل ځان یې مرګ ته ورکاوه ،دخپل اولاد مرګ ته تیارو ؛خودې ته نه ؤ تیار چې دحضرت رسول الله ﷺ په پښه کې دې یو ازغی قدر ولاړ شي، دامحبت چې ددوی دومره ډېرؤ وجه داوه چې دوی دحضرت رسول الله ﷺ عظمت ډېرپيژانده ؛نوهیبت یې په زړه کې ؤ،محبت اوعشق یې په زړه کې ؤ.

دازمونږ طریقت هم،داهم طریقت دصحبت دی ،ډېره ترقي چې په دې کې په مخ باندې راځې هغه په دې باندې چې دخپلو مشائخو سره داسې اخلاص موجود شي لکه دصحابه کرامو چې له رسول الله ﷺ سره موجود ؤ.

داچې سړی په حضرت رسول الله ﷺ باندې عاشق کیږي،دهغه له پاره اول شرط داده چې سړی به په خپل شیخ باندې عاشق کیږي ،چې دې ته په اصطلاح دتصوف کې فنافی الشیخ ویل کیږي، دفنافی الشیخ دامعنا ده چې دهغه خپل شیخ احوال ،حرکات اوسکنات به ده ته ترهرڅه شي محبوب وي ،کوشش به کوي چې دهغه په نقش قدم باندې ځان برابر کړي.

نود خپل شيخ سره محبت دځه وجې نه ده ،دده دشخصيت له وجه دی؟ نه دده دشخصيت له وجې خونه دی، بلکې ددې وجې نه دی چې شيخ دحضرت نبي کريم ﷺ وارث دی ،اوس چې له خپل شيخ سره ددين په خاطرمينه پيداشوه، داپه واقع کې دحضرت رسول الله ﷺ سره مينه ده؛نوخدای پاک ﷻ دهغه دهدايت لارې اسانه کوي، بيا دحضرت رسول الله ﷺ سره مينه اوعشق پيداکوي اودحضرت رسول الله ﷺ سره عشق دځه وجې نه وي؟!!

ددې وجې نه ده چې دی دخدای پاک ﷻ له طرف نه مونږ ته پيغمبر ده ؛نودهغه دعشق په واسطه بيا دخدای پاک ﷻ دعشق لارپيداکوي؛نوفنا فی الشيخ مقدمه دفنافی الرسول ده اوفنا فی الرسول مقدمه دفنا فی الله لپاره. ؛

## سلطان محمود غزنوي او حضرت ابوالحسن خرقاني

حضرت سلطان محمود غزنوي صاحب روان دی دوخت يوجيد عالم ابوالحسن خرقاني قدس الله سره ته څوک ورليږي چې ورشه! چې اميرالمومنين دې غواړي ،دوخت بادشاه دې غواړي.

ده ورته وويل چې زما اودهغه څه دي؟ زه يو ملنګ يم اوهغه بادشاه دی. بيا دباشاه قاصد ورته وايي چې: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡ﴾چې دخدای پاک ﷻ اطاعت وکړئ، دهغه درسول اطاعت وکړئ،دخپلواميرانو اطاعت وکړئ.

ابوالحسن خرقاني قدس الله سره ورته وايې چې زه داطيعوا الله نه اطيعوالرسول ته هم نه يم ورخلاص.

چې يو وار محبت دالله تعالی ﷻ سره پيداشو بيا رسول هم له مابين ځخه وزي، دپيغمبر سره محبت دڅۀ په خاطرده؟ خودالله تعالی ﷻ ددين په خاطر ده ،دغه ټول دمابين نه وزي. يعنې ددوی سره عشق ددوی دڅان په خاطر شي، بيا صرف په دغه خاطر شي چې دی دخدای پاک ﷻ دوست ده.نوالحب فی الله په خاطر محبت ورسره کيږي، چې هغه دايمان دکمال مرتبه ده.

نوکوشش دې سړی داکوي چې د سنتو باندې څان تابع کړي ،دشريعت څان پابند کړي، مونږ دطريقت اول شرط داده چې سړی به په شريعت څان برابر وي.

چې يو وار څان په شريعت برابر شو ،اخلاق اوعادات په شريعت برابر شو،بيا به دخدای پاک ﷻ په عمل کې ترقي راولي. بيا خدای پاک ﷻ وايې﴿ وَٱلَّذِينَ جَٰهَدُواْ فِينَا لَنَهۡدِيَنَّهُمۡ سُبُلَنَاۚ ﴾ چې څوک زماددين په لارکې کوشش کوي زه بيا دخپل څان دديدار لارې ورته خلاصوم،زما په طرف په اسانه طريقه راتلای شي، که اطاعت نوي،محبت نشې پيدا کيدای چې محبت نشو پيدا ،فنا نشې راتلای اوچې فنا رانغله بيا به سړی ناامیده پاته کيږي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلی الله تعالی علی خير خلقه سيدنا و سندنا و شفيعنا ومولانا محمد وعلی آله و اصحابه و اتباعه و اهل بيته اجمعين

# (۳۰) مجلس

## د نیاوي اوابدي ژوندون

حضرت رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته دګناهونو په متعلق کې داسې وفرمایل چې تاسې خان وساتئ دمهلکاتونه.

دحضرت رسول الله ﷺ ددې الفاظو مبارکونه داسې معلومیږي چې انسان ته دګناهونوپه سبب هلاکت اوتباهي پیدا کیږي.

دنیکو اعمالو په سبب باندې انسان ته حیات اوژوندون پیداکیږي اودبدو اعمالو په واسطه باندې انسان ته مرګ اوهلاکت پیداکیږي.

یو دنیاوې ژوندون دی ،یوحقیقي ژوندون دی بل مقابل یودنیاوې هلاکت دی اوبل حقیقي هلاکت دی.

ددنیاوې ژوندون خودظاهري خلکوپه سوچ،علم اوفکر کې داده چې انسان چې خوراک اوڅښاک کوي اودمرګ تروخته پورې داشپیته یا پنځوس کاله زندګې تیروي ،په ظاهره له بدن سره کار لري، دې ته ژوندون ویل کیږي.

حقیقي ژوندون داده چې سړی دخدای پاک ﷻ په دین باندې ژوندی شي،دهغه په برکت باندې چې کوم انسان ژوندی شو بیا په دې ظاهري مرګ چې سړی مړشي ،هغه نه مري،دشهداء په باب کې

خداوندمتعال ﷻ په قرانکریم کې خپله فیصله کوي چې هغه څوک چې دخدای پاک په دین باندې مړشي ،هغوی ته مړه مه وایئ هغوی ژوندي دي.

ظاهري خوکفن ورکوو،غسل ورکوواوجنازه وریاندې کوو،مال یې تقسیم وو، ښځه که ولري ،هغه بل څوک په نکاح کوي،اوس دمړو ټول احکام وریاندې جاري شول، خوخداوندمتعال ورته ژوندي ویلې دي،نوداکوم ژوندون دی؟

داهغه حقیقي ژوندون دی چې په هغه ژوندون چې دانسان نه روح وختله،هم دخدای پاک ﷻ دعبادت نه ،نه غافله کیږي،په تېرکې دجنت ترداخلیدوپورې دخدای پاک ﷻ په عبادت باندې لګیاوي، حتی په جنت کې به هم عبادت وي، اګر چې هلته عبادت نشته،انسان وریاندې مکلف ندی، پدغه عبادت به دوی خونداخلي، انبیاء کرام،اولیاء کرام اوشهداء ته خداوندمتعال حقیقي ژوندون وربه نصیب کړي.

## مرګ

۱- مرګ هم یوظاهري مرګ دی،چې دانسان نه روح وختله نومړشو.

۲ - یوحقیقي مرګ دی چې دابدي تباهي سره مخامخ شو،اګرکه هغوی( کفار) په دنیا کې ژوندکوي ،خوخدای پاک ﷻ هغوی ته په قرانکریم کې مړه ویلې دي .

﴿ يُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ ٱلْمَيِّتَ مِنَ ٱلْحَىِّ ﴾

په دې آیت کریمه کې مفسرین یوتفسیر داکوي چې مرې دړوندي نه پیداکوي، یعنې کافر له مسلمان څخه پیداکوي، پلارېې مسلمان زوی یې کافر، نواګرکه دوی خوراک اوڅښاک کوي، تګ راتګ کوي، خوبیاهم خدای پاک ﷻ دلته کفارو ته مړې ویلې دي.

څکه چې ددین په حیثیت باندې مړه دي، حقیقي هلاکت یې نصیب شوی دی، چې په دنیاکې هم سپې خوار، ذلیله اوشرمنده وي اوپه اخرت کې هم ورباندې شرمیږي.

نودګناؤ په باب کې حضرت رسول الله ﷺ دمهلکاتو لفظ ویلی دی ،چې داسپې ورباندې خرابیږي ،یارتبه ورباندې ختمیږي اویاد هغه هلاکت اخروي عذاب سره سپې مخامخ کېږي.

دحضرت رسول الله ﷺ په زندګي کې یووخت بدبویي جګه شوه، حضرت نبي کریم ﷺ وویل چې دامنافقینو دمسلمانانو غیبت وکړ، دلته دمسلمانانو په غیبت باندې رسول الله ﷺ ته بدبویي ورسیده ،لکه شی چې مردار شي اودهغه نه وروسته شي اوبدبویي وکړي، نوددګناؤ داسې بدبویي موجوده وي.

اګرکه محدثین کرام اعتراض کوي چې په یوه ځای کې په هغه وخت کې غیبت وشو، رسول الله ﷺ ته یې بدبویي ورسیده اونن سبا تول خلک په غیبتونوکې لګیا دي اوددې په بدبویي باندې څوک نه پوهیږي؟

نوجواب داکیږي چې نن سبا فضا توله خرابه شوې ده، هلته وخت بڼه ؤ ،خلک نیک ؤ چاګناوې نه کولې، که ګنا به ورنه وشوه، نوسمدستي به یې توبه استله، نوهوا اوفضا توله صفا وه

نویه هغه به چې لږ بدبویي دګنا اثر موجود به شو دستې به تول
وربانديې پوهيدل، نن سبا خکه نه پرې پوهيږي.
دتقوی اثر داده چې په چاکې خداوندمتعال هغه حقيقي ژوندون
پيداکړې وي چې ګناؤ ته ورنږدې شي ،نوزړه يې نه منې ،حتی
ديوشي حلالتوب اوحراموالي له قرانکريم اوحديث څخه معلوم
نوې،يوکاردی،تجارت دی يايوبل کاروبار خوکوي، خوچې سړی
منقي وي که په هغه شي کې شک ؤ اوپه هغه شي کې حرمت ؤ تاته
نده معلوم ،نودستي دې زړه بنديږي.
دحضرت رسول الله ﷺ نه څوک پوښتنه کوي دګناؤ علامه څه
ده،سړی به ګناه په څه پيژني؟ نوحضرت رسول الله ﷺ ورته وويل
چې: ﴿دع مايريبك الى مالايريبك﴾
چې دتاپه زړه کې يې شک درلوېږي چې داکاروکړم اوکه نه ؟
نوته پوه شه چې داګناه دی، داپه هغه ځای کې چې نه آيت شريف تا
اوريدلی وي اونه حديث شريف اونه دفقهي حکم تااوريدلی وي،
کله چې زړه صفا شو ،حقيقي ژوندون حاصل شو نودهغه حرمت او
خباثت دستي ورته معلوميږي. بيا زړه په تردد کې شي زړه يې نه
غواړي چې داکار وکړم، داحقيقي ژوندون چې راغی بيا سړی دګنا
ؤاوهلاکت نه بچ کوي، اوپه حرامو باندې نه لګيا کيږي ،چې نفس
دحرامو اوګناؤ ځای راته زړه دې دستې قبض کيږي اوحکم کوي
چې داشی ناروا دی.
حضرت عبدالخالق غجدواني قدس الله سره خپلومريدانوته
نصيحت کوي اوپه نصحيت کې ورته وايې چې مهم شی دابنيې چې

دګناهونوځان ساتئ، حتی داورته وایې چې دهلکانو اومحرمو ښځواوډېراغنیا دنیاداروله مجلسونوڅخه ځانونه وساتئ ،ځکه هلک چې ډېره یې نه وي،ښځه چې نامحرمه وي،غني چې ددغوسره دتا تعلق جوړ شي دادتا ددین غله دي،دیانت دي درخرابوي.

حضرت علي کرم الله وجهه فرمایي چې غلط نظرپه زهروککړ غیشی دشیطان ده، چې انسان پرې ولې لکه دانن سبا چې یوقسم زهري ګولۍ دي چې سړی وربانديې ولګیږي بیا نه جوړیږي؛نوچې سړی په غلط نظرلګیا شو داجاسوس ده،نودستې د ګناومحبت زړه ته اچوي ،دستې زړه ته رسیږي.

نواصل عمده شی دادی چې سړی دګناهونوځان وساتئ،هغه سړی تباکوي ،مړکوي، کله چې له ګناهونوڅخه ځان وساتل شو نوبیا په کم عمل دومره فائدې مرتبې کیږي چې بل څوک یې په شواروزکې کوي اویوپاک سړی یې په یوه منټ کې کوي، دهغه دشواروز دعمل نه ددغه یووار چې سبحان لله ووایې ډېر ثواب لري.

داچې سړی دتقوا حالاتو ته وګوري،﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝ اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ۝ مٰلِکِ یَوْمِ الدِّیْنِ ۝ ﴾ پورې ټول دالله تعالی ﷻ صفات دي، حمد اوثنا ده ،هغه داسې چې:

الله تعالی پالونکی دټولو مخلوقاتودی، ټول خلک ده پیداکړي اوروزي ورکوي ،ترمرګ پورې یې تربیه کوي، خدای پاک ﷻ رحمن دی، چې غټ اوواړه نعمتونه ددنیاټول درکوي، په خلکو باندې

رحیم دی چې ټول داخرت نعمتونه ورکوي، مالک یوم الدین ) دی دجزا دورځې څښتن دی، چې هلته سوال اوجواب ،عذاب اوثواب هرڅه دده په اختیارکې دي، هلته بیا دبل چا تصروف اوقدرت نشته، تردې ځایه چې قرائت وویل شو نواوس خبره بذات دخدای پاک سره شروع شو، (اپاک نعبد) ای خدایه پاکه ! خاص تاته عبادت کوم ،غږورته کوي،خطاب ورته کوي، مخامخ خطاب ورته کوي.

بیضاوي لیکي چې تقواداده حالات شروع کوي لکه مونږ اوتاسې ته چې مریدان وایې دسالکینویو ابتداي حالت ده، یوبې انتهایې حالت ده، په اول وخت کې به مرید ذکر کوي: الحمدلله ) په اول وخت کې به مرید دخدای پاک ﷻ په مصنوعاتواونعمتونو کې سوچ اوفکر کوي، چې خدای پاک ﷻ په ماځومره ډیر انعامات کړې دي، داچې وشو چې هلته انسان همیش په ذکر باندې لګیا ؤ،خدای پاک همیش ورته یادؤ، همیش دخدای پاک په احساناتو کې دده سوچ ؤ ،چې خدای پاک په ماځومره نعتونه کړي دي، اوهلته دقیامت دورځې سوچ ورسره پیداشي چې که زه هرڅه کوم هلته بیا له ماسره محاسبه کیږي، نوانسان کرارکرار کوشش شروع کړي ،بیا مقام دواصلون ته ورسیږي ،خدای پاک ﷻ ته رسیږي، مشاهده ورته پیداشي:( ایاک نعبد) بیا مخامخ دخدای پاک ﷻ سره خبرې شروع شي، هغه انتهامقام دمرید دی، دایې ابتدایي حالت دی ،په ابتدایي حالت کې به ذکر کوي ،په ابتدایي کې به مراقبې کوي، په ابتداکې به کوشش کوي، دګناهونونه به ځان ساتي، ځکه (مالک یوم الدین ) دی،هلته دعذاب ورځ راروانه دی، جهنم را روان دی،

سوال اوجواب راروان دی، کله چې په انسان کې ددې خبرو سوچ اوفکر پیداشوبیا کشف ورته پیداکیږي، مشاهده ورته کیږي، بیا هغه تجلیات اوانوارالهي په سترګو باندېویني، بیا نو دخدای پاک ﷻ سره مخامخ خبره شروع شي.

﴿ إِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَإِيَّاكَ نَسۡتَعِينُ ۝ ﴾ مونږ روزانه له نفلوڅخه پرته په (۳۲) رکعتونوکې الحمدلله وایو، خوداکثرو معنا ته ورپام هم نوي، په سوچ کې موهم نراځي چې دچاصفت کوو، چاته څه وایو، (ایاک نعبد) چاته نعره کوو؟ (وایاک نستعین) دچانه کومک غواړو؟

د﴿ ٱهۡدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلۡمُسۡتَقِيمَ ۝ ﴾ دچانه دحقې لارې دهدایت غوښتنه کوو؟

داغفلت په مونږ کې ولې دی؟

ښکه خو په ذکر باندې نه یو لګیا، اصل ذکر داده چې دانسان نه غفلت لرې شي، په هرحال کې یې خدای پاک ﷻ په یاد وي، نوکه لمونځ کوي، هم الله تعالی به دې یاد وي، په حضور به یې کوي، دریا لپاره به نه وي، ددنیا دبل غرض لپاره به نوي، بلکې دهیڅ لحاظ به پکې نوي، که علم کوي، که جهاد کوي، که روژه نیسي، که حج کوي، که زکات ورکوي، که صدقه ورکوي، که هرڅه نیک عمل کوي، دخدای درضا ماسوابل څه به نوي.

کله چې دانسان ذکر په دې طریقه شو چې غفلت ورنه لرې شو، بیا دخدای پاک ﷻ له طرف نه دافیض اوبرکت وریاندې کیږي چې درحمت دروازې وریاندې راخلاصیږي.

نو د ذکر مقصد داده چې په انسان کې دا د تقوا او احسان او اخلاص حالات پیداشي، چې هره معامله یې د خدای پاک ﷻ د رضا لپاره شي.

نو له ګناهونو څخه به ځان ساتئ، په نیک عمل کې به کوشش کوې، بیا خدای پاک ﷻ اثر مرتب کوي.

داچې مونږ ډېر ملګري داسې وي چې ډېروخت په وظیفو کې تېرکړي، او په اثريې نه پوهیږي د دغه بنیادي دوه غټې وجې دي:

۱ - داچې د مریدانو احوال مختلف دي، په دغه کې باید څوک بیا وسوسه ونه کړي، مونږ چې د تصوفو څو مره کتابونه کتلې نو دا لیکي چې په انسانانو کې فرق شته، بعضې داسې مریدان وي چې وظیفې یې پای ته رسولې وي بیاهم په هیڅ نه پوهیږي، حتی دي به په خپله بزرګې لا نه پوهیږي، خو دده مشائخو ته به خدای پاک ﷻ په ده علم ورکړې وي، دده مقام به ورته معلوم وي، نو داچې دستاربندې ورته کوي، یا اجازه ورته کوي، نو څه پکې ویني.

نو باید داما یوسي له چاسره پیدا نه شي، چې زه په وظیفه نه پوهیږم، نو نه یې کوم، کیدل شرط دي، پوهیدل شرط نه دي، که مونږ پوهیږو او که نه پوهیږو د خدای پاک ﷻ حکم ده: ﴿ فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ ﴾.

یا ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا ﴾

نو خدای پاک ﷻ حکم دی، ذکر یه کوو.

۲ - بنیادي علت د موجوده وخت د طریقت د بندښت او رکاوټ لپاره داده چې زمونږ له ګناهونو څخه ځان ساتنه نشته، یا موخبرې جیګې اوتیتې، یا مواعمال جګ اوتیټ دي یا نفقه تیته اوجیګه

وي، دنظرحفاظت نشته،دغوږوحفاظت نشته،دژبي حفاظت نشته،داندامونوحفاظت نشته، په عباداتوکې کوشش نشته،نو څرنګه به سړی په وظایفوپوه شي.

ددنیاکمال چې یوسړی حاصله وي نوهلته یې حاصله ولی شي چې چا کوم شی اجاد کړی اودهغه دحاصلولو لپاره یې چې کوم قانون وضع کړی وي دهغه قانون په مطابق ولاړشي ،یوانجنیرده ،ټیپ یارادیو جوړوي ته به دهغه شاګردي کوي،هغه پرزې به زده کوې بیا به یې عملي کوي بیا ته انجنیر کیدلی شي ، چې الله تعالی کوم قانون رالیږلی اورسول الله ﷺ کوم قانون مونږ ته بیان کړی ،ائمه کرامو یې کوم جزئیات مونږ ته بیان کړې ،نومونږ که وغواړوچې پدغه لار کې ماهر شو الله تعالی ﷻ ته به ورسیږو ،پدغه قانون چې هغه قران حبل الله متین ده چې خدای پاک ﷻ ته به رسیږو چې پدغه باندې عمل کوو نودګناه نه به ځان ساتو.

ددې خارجې مثال داده چې جاپان موټرجوړ کړی دی،ددغه موټر انجن ته به یو دتیلو پائپ ورغلی وي یویه دابو پائپ ورغلی وي.

داوبو پائپ خپل کار کوي چې هغه ماشین سره ول دي، دتیلو پائپ خپل کار کوي

اوس که دتیلوځای ته چاداوبو پائپ برابر کړ اوداوبو پائپ یې دتیلو ځای ته برابر کړ ؛نوبیا موټرچلیږي؟

نوچې ددنیا په تخنیک کې انسان پرزه بدله کړه هغه چې کوم شی جوړ کړی ده ،دده په قانون ونه چلاؤ نوموټربه خای ودریده.

دانسان وجود خدای پاک ﷻ جوړکړی داد هر په خفه کیږي، ځکه چې دالله تعالی بنیاد دی.

حضرت نبي کریم ﷺ فرمايي ﴿ الانسان بنیان رب ملعون من هدم بنيان الرب ﴾

بنده دالله تعالی بنیاد دی ،ادم علیه السلام یې پخپله بلاکیفه پیداکړی ده،په هغه انسان باندې لعنت دی چې دالله تعالی ﷻ بنیاد ړنګوي ،ددغې وجې نه چې یوانسان ځایه ناحقه مړکړ لکه دټولې دنیا انسانان یې چې وژلې وي اوچې یوانسان یې دمرګ څخه خلاص کړ لکه چې دټولې دنیا انسانان یې چې ژوندي کړې وي، خدای پاکﷻ بیادومره وریاندې خوشحالیږي. لکه په دې آیت کریمه کې فرمايي:

﴿ مَن قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا ﴾

اوس دغه پرزې چې خدای پاکﷻ په انسان کې پیداکړې ددغې چې خپل چوکاټ بنودلې ده چې سترګې به څرنګه مستعملوي،ژبه به څرنګه استعمالوي، غوږونه به څرنګه مستعملوي، ټول اندامونه به څرنګه مستعملوي، چې دبنده مصنوع په هغه طریقه ونه چلوي،نوولاړ ختم شو. نودالله تعالیﷻ مصنوع چې الله تعالی ﷻ جوړکړی ده هغه چې په هغه چوکاټ کې ونه چلوي؛نوهغه انسان به بیا څرنګه ترقي وکړي خوداترقي هلته راځي چې پدغه چوکاټ سري وچلیږي.

دخدای پاک ﷻ شکریه ویل کیږي دیته چې کوم اندامونه یې چې دکوم غرض لپاره پیدا دی،ته یې په هغه کې مستعمل کړه نودادې دخدای پاک ﷻ شکریه اداء کړئ ،خدای پاک ﷻ بیا درنه راضې کیږي.

اودادخدای پاک ﷻ وعده ده :﴿ لَئِن شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ ﴾ که تاسې زما شکرانه وسته نوزه به نعمتونه نورهم در زیات کړم اوشکریه یې دغه ده چې کوم اندام یې دکوم غرض لپاره پیدا ده په هغه کې مستعمل کړی شي ،دنیایي دکوم غرض لپاره پیدا ده ،په هغه کې مستعمله کړئ ،اهل یې دځه لپاره پیدا ده په هغه کې یې مستعمل کړئ.

نوچې دده په چوکاټ شو نودخدای پاک ﷻ درسره وعده ده چې ترقي به درته راځي.

په مخکې غټوغټودرسي کتابونوکې لکه حسامي ،حاشیه شرح العقاید، بیضاوي شریف ، مشکوة شریف،مرقات،اومسلم ثبوت کې تاسو وګورئ،داسې اولیاء کرام تیرشوې دي چې دابوبه سریه یې جای نمازونه وغوړول داوبو په سربه په لمانځه ولاړؤ اوډوبه ول به یې نه.

دشرح العقائد حاشیه رانقل کوي چې یوه به دزرو مریدانو سره په هوا کې الوتنه کوله ،داکرامت انسان ته الله تعالی ﷻ دځه لپاره ورکړی ؤ ؟

نویو شریعت ده چې کتابونو مونږ وایو اوبل طریقت ده چې دغه به مونږ په ځان عملي کوو، بل حقیقت ده چې خدای پاک ﷻ په هغه

نتیجه مرتبه کوي، اوکشف درته پیداکیږي، مشاهده به درته پیداکیږي،بیا به کرامات درته پیداکیږي، خومطلوب زمونږ کرامات نه دي.

مطلوب زمونږ استقامت ده، خدای پاک ﷻ له مونږغوښتنه د استقامت کړی ده،حضرت رسول الله ﷺ زمونږ نه داستقامت غوښتنه کړې ده،چې ځان په شریعت برابر کړه.

کرامت مونږ څۀ کوو ،که ورکوي یې اوکه یې نه ورکوي،دادخدای پاک ﷻ کار دی،داکرامت څۀ کوو چې سړی په هواګرځي خدانخواسته اخره خاتمه یې خرابه وي، اصل لوی کرامت داده چې ایمان وساتل شي اوپه ایمان کې سړی مړشي.

نودانسان دترقي دانسان دحقیقي ژوندون مانع مهلکات دی، ګناوې دي، ګناوې چې پیداشي په انسان کې حیات نه راځي،په انسان کې ترقي نه راځي، هغه کمپنۍ دانسان په مخ باندې نه ځې اوکه انسان په شریعت باندې ځان برابرکړ دخدای پاک ﷻ وعده ده اومشاهده ده.

درسول الله ﷺ له بعثت نه مخکې ډېرصحابه کرام ﷺ په کفراوشرک کې ؤ،بت پرستي یې کوله، په هغه وخت کې لائق دلعنت ؤ،لائق دغضب ؤ ،لائق دعذاب ؤ؛خوچې کله یې کلمه وویله په اسلام مشرف شول نوبیا تقوا داره شول چې دهغوی ځای ته هیڅوک نشې ورسیدلی،هغه انسانان ؤ چې تراسلام نه مخکې کافرورته ویل کیدل خوله اسلام نه وروسته بیادخدای پاک ﷻ دوستان شول.

حضرت عمر فاروق ﷺ حضرت رسول الله ﷺته مخامخ وایې چې له اسلام نه مخکې په ټولو انسانانوکې ترټولونه ته په مابد لګیدلې خوچې نن مې کلمه وویله په ټوله دنیاکې ماته محبوب ته یې.
داحضرت عمرﷺ هلته دجاهلیت په وخت کې څه مقام ؤ بیا په اسلام کې ددغه تقوی په برکت خدای پاک ﷻ بیا داسې اثرېکې پیداکړ.

## له حضرت عمرﷺ سره سمندراوغرونه خبرې کوي

تاریخ ابن هشام دحضرت عمر ﷺ په باب کې لیکي چې ده دجهاد لپاره تیاری شروع کړ چې په ایران اوفارس باندې یې حمله کوله ،خلکو ته یې حکم وکړچې ځانونه تیارکړئ ،کله چې دجهاد شپې رانږدې شوې درې شپې دی ورک شو،منافقینو اعتراضونه شروع کړل چې امیرالمؤمنین خلک جنګ ته راوبلل اودی په خپله پټ شو، درې ورځې وروسته چې راغی نو خلک یې راټول کړل خلک پوښتنې ورنه کوي،دی ورته وایې چې زه دلاړې دمعلوماتو لپاره تللی وم، (دعربو له علاقې نه دریاب راتاودی ) وایې چې دریاب ته ورغلم ،دریاب ته مې وویل چې زمامجاهدین راروان دي اوپه تاباندې تیرېږي دفارس اوایران طرف ته روان دي ،ته به څه معامله ورسره کوي؟ ګوره چې غرق یې نه کړې، وایې چې اوبوراته وویل چې داخو څه کوې چې په کشتیوکې راځي که دتا عسکر په ماباندې راغلل مونږ به ټول ورته یخی شو چې پښې یې هم لندې نه شي. داد استبعاد ځای نه دی، حسامي او شرح العقاید په بیان

دکراماتو کې دا واقعه رانقل کړې ده چې رود نیل داعادت ؤ چې په هرکال کې به هغه معلوم وخت به دی دریده ترهغه به نه روانې ده چې ترڅو یې یوپیغله بنه په ګینوجوړه کړې جنکۍ ور وانه چوله .

حضرت عمر ﷺ یوه وړه پرچه کې ورته ولیکل چې ای دریابه ! که دخدای پاک په امر روان یې ؛نوځه اوکه په خپل امر باندې روان یې نومه ځه .

هغه کاغذ یې چې ورواچاوه څوشپې ولاړ و بیا روان شو .

نوبیا وچې اوغروته ورغلم چې که زما عسکر اومجاهد درته راغلل ته به څه ورسره کوې؟ دازما مجاهد چې سترې نه شي،وایې غره راته وویل چې مونږ به هوار شو اودتامجاهد به سترې نه شي.

په مدینه منوره کې یووخت ګرمه هوا راغله،حضرت عمر ﷺ ګوته ورته وښوروله چې ای هوا پدې مدینه کې دخدای نظام چلیږي،دلته عدل ده چې دلته مسلمانانو ته ضرر ورنکړې.

هوا ودریدله چې ترڅو دی ژوندی و په مدینه منوره باندې بیاګرمه هوا رانغله .

یووخت کې زلزله شوه زمکه یې په پښه ووهله چې ولې په تاباندې دخدای پاک ﷻ نظام نه دی جاري؟ چې ترڅو دی ژوندی وو په هغه زمکه باندې بیا زلزله رانغله.

دادومره کرامات،خدای پاک ﷻ په څه ورکړې ؤ؟ په دغه دین یې ورکړل ،له اسلام نه مخکې څۀ نوم؟ اودڅه شي مستحق ؤ ؟ چې بیا یې اسلام په خان عملي کړ په اسلام مشرف شو بیا خدای پاک ﷻ څومره عزت ورکړ.

داخو هغه کرامات دي چې په غټوکتابونوکې رانقل شوي دي نوربعضې دتاریخو کتابونه داسې شیان بیا نوې چې دبعضې خلکو زړوته نه لوېږي. هریو صحابي ته خدای پاک ﷻ همدغه کرامات ورکړي دي.

## دحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه کرامت

حضرت نبي کریم ﷺ وایې چې دامیلمانه دي،څوک داسې شته چې کورته یې بوځي اوډوډۍ ورکړې ،مسکنان غریبان دي.
حضرت ابوبکر رضی الله عنه کورته راوستل ،دی بل چیرته میلمه و چې کورته ناوخته راغی دخپلې بي بي نه یې پوښتنه کوي چې میلمنو مړه وخوړه ؟ بي بي یې ورته وویل چې نه .هغوویلې چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه نوې راغلی ترهغه پورې مونږ ډوډۍ نه خورو.
حضرت ابوبکر رضی الله عنه سخت خفه شو چې دحضرت رسول الله ﷺ میلمانه دي،هغه ماته حکم کړی ؤ اومادوی مړه دومره وخنډوله نوپه کورکې کم شی و هغه یې ورته تیار کړل .
نوچې ډوډۍ په خوراک یې شروع وکړه چې ګوله به یې پورته کوله هلته به نوره په کاسه کې راپیداکیدله ؛نوپه هغه لیږ ډوډۍ میلمانه هم ماړه شول اودکور خلک هم ماړه شول اوبل چاته یې هم ولیږله.
داچې څومره خلکوته خدای پاک ﷻ ددنیا اواخرت اعزاز نصیب کړی داپه دین باندې دعمل کوله په وجه ورنصیب شوی ،داپه تقوی

ورنصیب شوی، خوشریعت دواړه اړخه لري ،چې نیک عمل به کوي،دبدوکارونوڅخه به ځان ساتي. بیا به داانسان ترقي کوي، بیا به خدای پاک ﷻ ته نږدې کیږي ،خدای پاک ﷻ به دغه انسان ته دغسې عزت ورکوي.

الحمدلله دازموږ اوتاسې دطالبي اواسلام اونیک عملي زندګي،په کوروړهاو روبیو نه پیداکیږي ؛خولکن که ددغې زندګې قدر موږ وپیژنو ،لیږ ښه شو،دمجلس سره څه احتیاط وکړو ،د ماحول سره،دخوراکونوسره اودچښاک سره ؛نوبیابه ددغوشیانو خوند حساً موږه درک کړو لکه سړی چې خوږشی وخوري په ژبه پوهیږي چې خوږه ده، نوپه قسم درته وایم چې بیا به ددغه عبادت خوند داسې درک کوو.

## په عبادت کې دحِسي خوندمثال

یوه ورځ ماته یوملګري حال بیان کړ الحمدلله زموږ دموجوده وخت په طالبانومریدانوکې داسې خلک شته ،نورڅه نه بیانوم صرف داچې دی وایې چې دعبادت په وخت کې ماته دومره خوندپیداشي ،دلمانځه په حالت کې بیاخاص کر دسجدې په حالت کې دومره فیوضات راځې ،داسې خوند راته پیداشي چې دډېره خونده مې داسې حس کوم چې هډوکې مې مات شول،لکه هغه یوشی چې دډېرخوږشي بیخې یې برداشت نشې کولای.

په عبادت کې دومره اندازه خوندورته پیداکیږي ،داددغه دین احترام دی.ددغه دین وجه ده، چې ددغه دین په برکت باندې خدای

پاک ﷺ په یوه انسان کې ددین مینه دومره اعزازاودومره ذوق پیداکوي ،دغه هغه ذوق حسې ده،زړه یې پرې خوښېږي ، اندامونه اوژبه یې پرې خوښېږي اودخوندا خیستل هلته راځي چې سړی ځان کنترول کړي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا و سندنا و شفيعنا ومولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين



# (۳۱) مجلس

## دشريعت خلاصه ، علم ، عمل اواخلاص دی

حضرت مجدد الف ثاني قدس الله سره العزيز فرمايي چې شريعت ضامن دسعادت ددنيااواخرت دی. يعنې څوک چې په شريعت باندې عمل مختاره کړي خداوندمتعال ﷻ دغه انسان ته په دنياکې هم سعادت اونيک بختي پيداکوي اوپه اخرت کې هم سعادت اونيکبختي ورته په نصيب کوي.

لکن دی فرمايي چې شريعت دڅه شي نه عبارت دی چې سړی دهغه په سبب اوبرکت باندې په دنيااواخرت دواړوکې دسعادت څښتن ګرځي؛نوپه مکتوبات شريف کې ليکي چې شريعت عبارت له دريوشيانو څخه دی: علم ،عمل اواخلاص.

بواريه په دين باندې ځان خبروې بيابه دهغه خپلې خبرې سره موافق په هغه به عمل کوې،اوبيا به په هغه عمل کې مخلص وې. هغه عمل به دې دخدای پاک ﷻ درضا لپاره وي ،دادرې صفات چې په چاکې جمعه شي چې علم ،عمل اواخلاص ده ددغوخلکو سره دخداوندمتعال ﷻ له طرف نه وعده ده،دحضرت رسول الله ﷺ په خوله مبارکه ددغو خلکو سره وعده ده چې خداوندمتعال ﷻ دغه مسلمان په دنياکې هم کاميابه کوي اوپه اخرت کې هم ، دصحابه

كرامو ﷺ په باب کې باربار په قرانکريم کې اظهاردرضايت کوي: ( رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُواْ عَنۡهُۚ ) خداى پاك ﷻ له دوى نه راضي شوى دى اودوى له خداى پاك ﷻ نه راضي دي.

اوس دا صحابه كرامو ﷺ ته چې دغه مقام خداى پاك ﷻ ورنصيب كړ داله څه وجې نه ؟

ځكه دادرې سره شقه په دوى کې موجود و ،هرالهي حكم به چې نازليده نودوى به كوشش كاوه . حضرت رسول الله ﷺته به يې ځان ور رساوه په هغه مسئله باندې به يې ځان خبراوه، اوبيابه يې هغه شى بې له عمله نه پريښود، حتى حضرت عمر ﷺ سورت البقر دقرانكريم په دونيم كاله کې خلاص كړى. ځكه چې هرآيت به يې وويلې نومخكې به نورآيتونه نه ويلې ترڅوچې هغه به يې په ځان عملي كاوه.

نوعلم ؤ ددين په مسئلو يې ځان خبراوه اوبيا به يې سمدستي په هغه عمل كاوه، اوپه عمل کې به مخلص ؤ ،دومره اندازه هغوى دعلم اومعرفت سره شوق اوذوق درلود چې قران اوحديث ددوى په صفتونو باندې ډک دى اودومره اخلاص پكې موجود دى چې اكثرو به كوم عمل وكړ خداى پاك ﷻ به دستي آيت نازل كړ چې زه پدغه عمل ددوى نه راضي يم .

حضرت علي ﷺ څلور ديناره يوپه شپه صدقه بل يې په روڅ کې صدقه كړ يوپه پټه بل په ښكاره خداى پاك ﷻ دستي آيت نازل كړ :( ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمۡوَٰلَهُم بِٱلَّيۡلِ وَٱلنَّهَارِ سِرّٗا وَعَلَانِيَةٗ ) هغه خلك

چې په شپه کې صدقه کوي او په ورځ کې صدقه کوي په پټه صدقه کي،په ښکاره صدقه کوي ددغه خلکو لپاره اجر ده ،نه به په دغوخلکو په اخرت کې ډاروي اونه به دوی غمجن وي.

دغه وخت څلور روپۍ يې صدقه کړې خدای پاک ﷻ يې په قرانکريم کې دستې ذکروکړ که کمکی عمل ؤ هم دخدای پاکﷻ درضا لپاره.

حضرت ابوبکرصديق ﷺ څلويښت زره روپۍ لس زره په شپه کې لس په ورځ کې ،لس زره پټې لس زره په ښکاره صدقه کړې خدای پاک پدغه آيت کې دده هم مدحه وکړه چې که به يې غټ کاروکړ هم چې دخدای پاک ﷻ درضا لپاره ؤ مقبول و ،که به چاکمکی عمل وکړ هم دخپل وس سره موافق دخدای پاک ﷻ درضا لپاره ؤ مقبول ؤ،نوواجب تعالی ﷻ دخپلې رضا اظهاردوی ته کړی و.

حضرت رسول الله ﷺ دوی ته دجنت زېری ورکړی څکه چې ددين درې سره شعبې په دوی کې موجودې وې : علم ؤ،ددين په هره مسئله باندې دوی ځان پوه کاوه،حتی وعظ اونصيحت به وشو،رسول الله ﷺ به احکام بيان کړل بيا به چې بعضې صحابه کرام برې پوه نه شونوهغه بل صحابي ته به ورنږدې شو چې حضرت رسول الله ﷺ څه ووېل،دهغه نه به يې پوښتنه کوله اوځان به يې پرې پوه کاوه.اوبيابه يې دستې عمل ورسره ملګری کاوه ،که به څه ناڅه له دوی نه نقصان پيښ شو دستې به حضرت رسول الله ﷺ ته راتلل ارتوبه به يې وايستله،معذرت به يې وغوښت چې له مانه يوداسې ناروا کارشوی ،اګرکه به هغه ګناه صغيره وه هم ؛خودومره دخدای

پاک ﷻ دار ورسره ملګری و ،مخلصین ؤ دستې به یې خان پیش کړ چې هرحد په ماباندې جاري کېږي جاري یې کړئ خوچې اخرت ته پاته نشي.

اخلاص ،عمل اوعلم ټول په دوی کې موجود و ،قرآن اوحدیث ددوی له صفاتونه ډک دي.

نوحضرت مجدد صاحب وایې چې شریعت ددنیااواخرت ضامن دی ؛خوشریعت دغه درې سره جزه غواړي :علم،عمل اواخلاص.

په قرانکریم کې خدای پاک ﷻ مونږ ته دعلم حکم کوي :﴿ فَسْـَٔلُوٓاْ أَهْلَ ٱلذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ بیا دعلم مقام ذکر کوي : ﴿ يَرْفَعِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنكُمْ وَٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ ۚ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾

خدای پاک مسلمانانو ته لوړې درجې ورکړې اوعلماء کرامو ته یې خصوصا بیا ډېرې لوړې درجې ورکړي دي.

حضرت ابن عباس ؓ فرمایي : چې دعلماء کرامو په نورو خلکو باندې سل درجې جګې دي ،په جنت کې دیوې درجې تریلې درجې پورې دومره فاصله ده لکه له زمکې نه تراسمانه پورې. هم یې حکم ورته کړې چې علم زده کړئ اوهم یې مدحه کړې ده چې دعلماء کرامو بیا زماپه نزد باندې په اخرت کې دومره لوړمقام ده اودومره لوړ مقام ورکوم.

له علم نه وروسته الله پاک ﷻ له مونږ نه عمل غواړي : ﴿ وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ لمونځ وکړئ. ﴿ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ زکات ورکړئ. ﴿ كُتِبَ

عَلَيْكُمُ ٱلصِّيَامُ ﴾ په تاسو باندې ماروژه فرض کړې ده ، ﴿ وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ حِجُّ ٱلْبَيْتِ مَنِ ٱسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً ﴾ په تاسو مې دبیت الله شریف حج فرض کړی ده.

په دغو ټولو کې دعمل غوښتنه ده ،علم هم راباندې لازم ده اودعمل غوښتنه هم ده، په هرحکم کې خدای پاک زمونږ نه داغوښتنه کړې.

اوبیا دافرمایي چې :﴿ وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعْبُدُواْ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ حُنَفَآءَ ﴾ داانسانان نه دي مامور مګر په دې چې عبادت به کوي، خاص دخدای پاک درضا لپاره، درې سره په قران کریم کې ذکر دي.

بیا ددریو سره ثمره خدای پاک ﷻ ذکر کوي :﴿ وَنُودُوٓاْ أَن تِلْكُمُ ٱلْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ نن چې دجنت دغونعمتو ته ورسیدئ دادهغه عمل په سبب چې هغه تاسې په دنیاکې سترې پکې تیرکړې وې،تکلیفونه موتیرکړې ؤ،دهغولوږو تندو دهغو ساړه،دهغو مسکنتوثمره وه چې خدای پاک ﷻ وایې چې نن ماتاسې ته په جنت کې دامقام درکړی.

خودا یادساتئ چې که څومره علم وي چې اخلاص نه وي پکې هرڅومره علمونه وي چې اخلاص نه وي پکې ،دخدای پاک ﷻ په نیزباندې دیوې زرې په اندازه قدر نلري، چې دخدای پاک ﷻ رضا نوې ،خدای پاک ﷻ وایې : انا اغنی الشرکاء عن الشرک ﴾ دماسره چې څوک شرک کوي په عبادت کې دبل څه نیت کوي چې فلانکی

ماته بنه سړی ووايي يامې صفت وکړي زه دداسې عمل نه بې پروا يم دداسې عمل ثواب زه نه ورکوم په قيامت کې حکم ورته وشي چې دچاليپاره دې کړې ورشه دهغه نه يې ثواب وغواړه.

نوهرڅه چې وي اواخلاص نوې پکې که جهاد ده، که علم ده، که روژه ده، که لمونځ ده ،که زکات ده اوکه حج ده دخدای پاک په نزد ندې قبول اوچې اخلاص موجود شو بيا دغه انسان دغه خدای پاک ﷻ طرف ته نهايت زياته توجه پيداکيږي، بيادغه انسان ديته نه سوچ کيږي چې اودريږي څوک دې زما صفت وکړي، ياخلک زما غيبت ونکړي ،ځان وساتې خلک دې زما احترام وکړي ددغو شيانو فکر بيانه ورسره پيداکيږي خکه ددوی عمل دخدای درضا لپاره وي ؛نوکه خلک يې صفت کړی اوکه غيبت کړی چې دخدای پاک ﷻ په نزد باندې دده عمل مقبول وي نودخلکوصفت څه ګټه ورته کړې اودخلکو غيبت څۀ تاوان ورکوي.

ددغې وجې نه چې مخکني اسلافو علماء ،مشائخ کرامو تاريخ چې سړی وګوري ،هر عالم ،هرپير،هربزرګ دمخکې وخت چې شهرت به يې د هرشو نوبيا به يې قصدا يوداسې عمل وکړ چې هغه شهرت مې ختم شي ،داسې نه چې زه دنفس په جال کې واقع نه شم اوبيا تبا شم.

## حضرت حافظ شيرازی د خپل شهرت ختمولو له پاره څه وکړل ؟

حضرت حافظ شيرازي دادوخت دعلماء اواولياء له قبيلې نه ده خوشهرت يې چې د هرشو ده داکار شروع کړ روزانه به چې د بازار نه

کورته راتلو دشرابو بوتل به یې ورسره راواخیست اوپه هغه ځای کې رنډۍ خاني ډېرې وي لکه اوس هم په ایران کې ډېرې دي په نامه دچکلویاندې دي، نویوه رنډۍ به یې له ځان سره راروانه کړه خپل ځای ته به یې راوسته.

خلکو چې دده داعمل ولیده ټولو دده سره بایکاټ وکړ چې داخومونږ بزرګ اونیک سړی باله داخوشرابي اوزاني ده ؛ نوددغه سره تعلق څه پکار ده،نوله داسې خلکونه دعاغوښتل اوآدب څه ګټه لري.

تردې پورې چې حافظ شیرازي رحمه الله وفات شو،دوفات نه بعد علماء په دې کې مختلف شول چې دده جنازه وکړواوکنه ؟

بعضې علماوو کرامو وویل چې ده ددین ډېرزیاته بې ادبي کړې ده،څکه عالم ؤ دعالم اوبزرګ په نامه یې وخت تیرکړی ؤ دومره بې دیني یې کوله چې شراب یې څښکل ،زنا یې کوله دعلم رنګه یې بده کړه،ددین رنګ یې بد کړ ؛نوقابل دجنازې نه دی چې جنازه یې وکړو.

اوبعضې خلکو به ویل چې ګنهګار ده ،دګناه په سبب خودجنازې نه منعه نشته،جنازه به پرې اوکړو . اخیرفیصله په دې وشوه چې دده له خادم نه به پوښتنه وکړو چې دده څه عمل و؟

له خادم نه یې پوښتنه وکړه چې داحافظ شیرازي دادومره وخت موږدی وینو چې کله به دی کورته راته نودشرابو بوتل به یې په لاس کې ؤ اوبلې خواته به یې پردۍ ښځه هم له ځانه سره روانه کړې وه نوداراته ووایه چې دده څه عمل ؤ؟

نوهغه خادم ورته وویل چې داسمه ده چې هره ورځ به يې ديوبوتل اوبوه ښځه له ځانه سره راوستله ؛خو بوتل به يې په کورکې يوزوړ کوهی ورته وښوده چې هغه ته به يې ورتش کړ اوزه په دې نه يم خبر چې په هغه کې به څه و، علماء چې ورغلل چې ګوري هغه کوهی له شرابو له وجې غوړ پړ ؤ ؛نوددې نه خوبې تسلې وشوه چې شراب خوبې نه دي استعمال کړي.

بيا يې ورته وويل چې دازانيه ښځه يې چې دځان سره روا ستله ددغې سره يې څۀ معامله کوله؟

نوده ورته وويل چې روزانه به چې ده ښځه راوستله دده دخانقاه په شاه کې کوټه وه غُسل خانه هرڅۀ دضرورت شيان پکې موجود ؤ دغې ښځې ته به يې وويل چې دتاخو پدغه بدعملي کې مطلوب داده چې روپۍ پيداکړې دغه روپۍ زه درکوم خوغسل وکړه نن شپه دخدای پاک عبادت وکړه.

علماء کرام حيران شول چې زموږ څومره بدګماني وه اودده څۀ حال ده ،بيايې ورته وويل چې ده په اخروخت کې څۀ وصيت کړی اوياليکلی ده ؟ خادم ورته وويل چې ده په اخرکې يوشعر ليکلی ده اوددغه نه بعد دی وفات شو. هغه شعرڅۀ ده ؟ دوی ورغلل کاغذيې راواخيست ،په شعر کې ده مبارک ليکلي دي:

قدم دریغ از جنازه حافظ مدار

اگرچه غرق بگناه است میرود بهشت

قدم دحضرت حافظ له جنازې څخه مه منعه کوئ .اګرکه دی ګنهګاردی خوبیاهم جنت ته داخلیږي.

حضرت حافظ شیرازي رحمه الله په دې پوهیده چې زما په جنازه کې په ددوی اختلاف راځي ځکه چې نیکوخلکو ته دزنکدن په وخت کې دجنت زیری کیږي.

لکه په دې آیت کریمه کې راځي :﴿ تَتَنَزَّلُ عَلَيۡهِمُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ أَلَّا تَخَافُواْ وَلَا تَحۡزَنُواْ وَأَبۡشِرُواْ بِٱلۡجَنَّةِ ٱلَّتِي كُنتُمۡ تُوعَدُونَ ۝ ﴾

قرانکریم وایې چې دزنکدن په وخت کې ملائکې راځي ده ته بشارت ورکوي.

نوهغه لیکي چې زماله جنازې څخه مخ مه اړوئ اګرکه زه ګنهګاریم خو جنت ته روان یم ،ځکه چې دده هرکار دخدای پاک ﷻ درضا لپاره و، مخلص ؤ چې داسې نه چې داشهرت ماخطا کړي، دېروخت کې دډېرو خلکو ډېرنفس په دې باندې مزې کیږي چې خلک ټیټ اوجګ ورته کیږي خلک یې عزت اواحترام کوي پدغه سبب دده نفس لوی شي،دتباهي سره مخامخ شي.

## په رخصت عمل کولو سره شهرت ختم شو

یولوی ولي دخپل ځای نه دبخارا په،طرف را روان شو اوخپل مریدان یې ورسره ملګري و، اویه اوښ باندې سپور ده نودبخارا خلک استقبالي ته ورته راوواته ،ده داخلک چې ولیدل نووې ویل چې نفس مې خراب نه شي،بې لارې نشې نودروژې میاشت وه

ډوډۍ یې راواخیسته ،په خوراک یې شروع وکړه اوپه اوښ سپورشو،خلکو چې دی ولید دستې ترې وګرځیدل چې داخو خلکو ویل چې دومره لوی بزرګ ده مونږه یې استقبالي ته راغلي یو اودی خوروژه خوري؟

ده داخپلو ملګروته مخ وګرځاوه چې وګوري ددین په مسئله مې عمل وکړ ،مسافر ته دروژې خوراک روا ده خوخلکو دومره کرکه وکړه اوس رخصت ۋ ،ده داکار قصدا وکړ.

## دکستېم خلیفه صاحب شهرت نه خوښاوه

زمونږ په مشائخ کرامو کې حضرت شیخ المشائخ خلیفه صاحب مولوي عنایت الله چې دکستېم په خلیفه صاحب مشهور ده ،داخوکاله مسلسل هرکال حج ته خي اوبیا چې دحج نه راخي کورته حال نه ورکوي تردې پورې چې دبکس سره کورته ورننوت ،خلک ورباندې خبرشي ،یوکال چې دده سره یې هغه خپل زوم مبارک تللی ، نه دراتګ په وخت کې په کوم ځای کې کوزشول ،کورته یې تلیفون راوکړځه طالبان اومولویصاحبان اوعام خلک یې استقبال ته ورغلل خودکستېم خلیفه صاحب مبارک دومره خپه چې چې داخلک چاراخبرکړل په دې باندې خومونږ لغرقیږو چې داخلک زمونږ استقبال ته راخي دومره احترام اوعزتونه موکوي.

## يو عالم د تقرير په منځ کې ولې کېناست؟

يوه خليفه صاحب ماته ديوه مولويصاحب قصه کوله چې ښه په جوش تقريريې شروع کړی ؤخودتقريرپه منځ کې يوناڅاپه کيناست داسې هم نه چې داخردعوانا ان الحمدلله رب العالمين اوياد وماعليناالا البلاغ المبين جمله يې په منځ کې پرېښوده وايي وروسته ماپوښتنه ورڅخه وکړه چې څه دربانديې وشول وايي ده ويل چې کله تقريرشروع شو دادتقرير خبرې چې په جوش شوې کله چې خلک متوجې شول په داعين تقرير مې نفس غټ شو چې زماتقرير په خلکوباندې څومره ښه اثروکړنوماويل چې دانفس په دې ځای کې ذليله کړم نوددې وجې څخه کيناستم طريقت په ګټوکې ده داقصه کوله چې هغه مولوی صاحب په ځان پوه شو چې نفس مې خراب شو نفس مې غټ شو نوسمدستي کيناست چې هغه خلکو ته يې نفس شرمنده وګرځاوه.

دامام مجددالف ثانی (رحمة الله عليه)څخه رانښولې ترحضرت ابوبکرالصديق ﷛پورې بلکې ترنن وخته پورې دطريقت ټول مقصداخلاص دی چې څومره مشايخ کرام دي څومره چې اخلاص کوي دومره يې مقام اومرتبه لوړيږي چې يوواري کاردخدای ﷻله باره شو بيايې خدای تعالی په خبره کې هم اثرپيداکوي په عمل کې هم اثرپيداکوي بلکې په هرڅه کې يې الله تعالی اثرپيداکوي.

شریعت محمدي ددنیااواخیرت ضامن دی خودادرې سره اسباب غوارې علم عمل اخلاص بې علمي هم سبب دتباهي ده امام مالک قدس الله سره وايي : من تصوف بغير علم فقد تزندق. ترجمه: څوک چې تصوف بې له علم څخه لاسته راوړي نوکیدی شي بیاکله کفرته هم پکې ورسیږي څکه دروا اوناروافرق نه پکې کوي.

## دپنجاب د یو پیر واقعه

چاقصه راته کوله چې دپنجاب لوري ته یوپیر ؤ سپی به یې گرځولو اوډیره یې هم خرېلې وه چې کله یې سپی مړشو نوهغه مریدانویې په سپي جنازه وکړه اوبیا په سپي باندې قبرهم جوړکړ اوس یې زیارت ته ورځي نوددې جملې دامام مالک قدس الله سره مصداق وګرځېده.لکه هغه پښتانه هم چې وايي چې څوک بې علمه شیخي کوي هغه کفريږي بس دی امام مالک قدس الله سره وايي که څوک ځان بزرګ کوي اوعلم نه وي ورسره نودی کیدای شي کفرته ووزي اوکه څوک بیاعلم کوي اوعمل نه وي ورسره اخلاص اوتصوف نه وي ورسره نوامام مالک قدس الله سره وايي (من تعلم بغيرتصوف فقدتفسق) څوک چې علم کوي اوتصوف نه وي ورسره داسړی فاسق ګرځي عالم نه ورته ویل کیږي ( ومن جمع بينهما فقدتحقق ) څوک چې دادواړه سره یوځای کړي چې هم علم وي اوهم تصوف وي دتصوفو مطلب داده چې عمل یې په اخلاص وي هرڅه یې دخدای تعالی له پاره وي نوبیادغه انسان هلته کمال ته رسیږي اوکامل ګرزي نوموږ به ځان هم خبروو ددین په احکامو

باندې اودعمل به پوره کوشش کوو چې په ځان یې عملي کړو او په
عمل کې به نیت دخدای ﷻ درضاوي داسې نه چې فلانکی ماته
عزت راکړي شکرانې راکړي مېلمستیاوي راته وکړي قدراواحترام
مې وکړي خبره مې ومني ددغوشیانونیت به نه کوي ډېرمشائخ
کرام داسې وي چې خلک ورته جګ اوتيټ کیږي یاېې لاسونه
ورښکلوي اوياازدحام رش ورباندې جوړوي په دوی مبارکانو
باندې ډېربوج اوسبب دې تکلیف ورته ګرځي په کنځاوو باندې
دومره نه خفه کیږي لکه په دغونوموړوخبروباندې چې مخکې مو
درته لیکلې دي ځکه په نوموړیوخبرباندې نفس ډېرغټیږي
اودابیادتباهي سبب ګرځي.

## نفس په صاحب صاحب ډېر غټیږي

یوولي ډېرسپیره خوراکونه کوي اوډېره کمه ډوډۍیې وخوړه چې
یووخت خپل نفس ته متوجې شو نوخپل نفس یې د یوه غټ غوایي
په څېر ولیدلو بیاخپل نفس ته ؤایي چې ماخوته ساتلی هم نه یې
دانه په څه شي باندې غټ شوې ؟ (خدای ﷻ خپلودوستانوته حال
ورښيي ) هغه ورته وایي چې زه په خوراک باندې نه مزی کیږم زه په
ښومېووباندې نه غټیږم نودی بیاورته وايي چې ته په څه شي مزی
کېږې ؟هغه ورته وایي چې زه په دې مزی کېږم چې داصاحب
صاحب راته ویل کېږي په دغه باندې زه ښه مزی کېږم.
تاسې لیدلي ؟ چې یوسړی قدرت ته ورسیږي نوسمدستي مزی شي
طبیعت یې بدل شي ځکه هغه ته صاحب صاحب ویل ډېرشي نودغه

ولي بیاقصداً داسې عملونه شروع کړل لکه مخکې موچې اشاره ورته وکړه نوخلکوتوجه ورڅخه بدله شوه یعنې هغه صاحب صاحب ویل ورک شول بیاچې خپل نفس ته متوجې شو نوخپل نفس یې دیوډنګرتازي په شکل ولید اویه دغه وخت کې یې خوراکونه هم ښه ډېرکړي وو نوبیادی ورته وایي چې داولې داسې ډنګرشوی یې ؟ اوسره له دې چې وس خودې ښه ساتم هم ښه خوراکونه اومیوې درکوم نودانفس ورته وایي چې څوک خپل دښمن ته حال وایي دهغه به داسې حال وي لکه دې ما ته خودنفس دښمن وې.

حضرت نبي کریمﷺته اللهﷻوایي ( عادی نفسك فانه قام بعداوتی ):دخپل نفس دښمني کوه ځکه دازماپه دښمني باندې ولاړ دی نفس په اصل ذات کې سرکشه اماره بسوء دی ﴿ وَمَآ أُبَرِّئُ نَفۡسِيٓۚ إِنَّ ٱلنَّفۡسَ لَأَمَّارَةُۢ بِٱلسُّوٓءِ ﴾ نوچې ترڅودانفس اصلاح نشي مطمئن نشي نفس راضیه نشي نفس مرضیه نشي نفس تقریباًاوه مقامات لري چې مخکې ذکر شوي دي. چې دا د سرکشي له مرتبې څخه بدل نشي نویوانسان ډېر ولویو،لویوکندوته غورځوي تاسې نه ګوری ډېرعلماء دي دعلم له وجې څخه دومره په غروراوتکبرکې وي چې په کتاب یې لیږ اوډېرسرهم خلاصیږي نوهغه ته دخلکو لیږوریام شي نودی په غوره کې شي اونفس یې غټ شي نودخپل علم له وجې ګمراه شي ولې خان ډېرغټ ورته ښکاره شي نوداخپل علم یې دده اوخدای ﷻترمنځ پرده شي.

## دعلم اصلي حقيقت دامام غزالي قدس الله سره په رايه په تصوف کې ده

حضرت امام غزالي قدس الله سره دومره لوی عالم و چې که دده دعمر په شپو دده دعلم دتصنيف يو ،يو دفترتقسيم کړي نوهرې شپې ته به يو، يو دفتردتصنيف ورسيږي دهرلوی عالم ،په هرفن کې دده تصنيفات شته دي په (۴۵۰) هـ کې پيدااوپه (۵۰۰) هـ کې وفات شوی دی نوټول عمر يې (۵۰) کلونه ،هغه وايي چې له ماسره يووخت پرفکر اوسوچ پيداشو چې هريوشی حقيقت لري هغه داسې حقيقت چې په هغه کې بياتغيرنراځي داعلم هم يوحقيقت دی نوددغه اصلي حقيقت به څرنګه وي نوماچې دکتابونومطالعه وکړه نودالاسته راوړنه مې وکړه چې علم يقين ته ويل کېږي هغه يقين به په دومره اندازه مضبوط وي يعنې دايومنل شوی حقيقت دی چې علم يقيني شی دی دمثال په توګه چې دايوه ستن ده که دايوڅوک په هواالوزوي دومره خوارق ماته ښکاره کړي اووايي چې داسړی ولاړ ده زماپه هغه يقين کې بايدتردد اوشک رانشي اصلي علم دغه مقام ته ويل کېږي

وايي ماخپل علم ته وکتل داسې مقام ته نه و رسيدلی ځکه دېر علماء داسې وي چې په يوه خبره ښه کلک وي خو چې بيابل دليل بربل څوک ورته وړاندې کړي بيادغه نوموړی عالم له خپلې خبرې څخه اوښتی وي شک اوتردد ورته پکې پيداشي نوکتابونه مې

پسې کتل چې دعلم حقیقت به زه چېرته پیداکړم دعلم انواعوته پسې ولاړم په علم الصرف کې مې پیدانکړ په علم النحوکې مې پیدانکړپه علم المعانی کې مې پیدانکړ بې شمېره علوم مې پسې وکتل په اخیرکې مې دتصوفویوڅه کتابونه وکتل نوومې ویل چې ددغوخلکو سره تعلق پیداکړه که خدای ﷻ ددغوخلکو په واسطه په تاکې څه حقیقت پیداکړي نفس ماته داسوچ راواچاوه چې ته خوډېرښه عالم یې اوډېرزیات تصنیفات لرې اوخلک دې ډېر عزت اوقدرکوي نوکه ته اوس دیوچامریدشوې اوملنګي دې غوره کړه هغه احترام اوعزت اوهغه دعلم دبدبه به دې ټوله په ا وبولاهو شي نودې وایي چې زمااودنفس ترمنځ شپاړ میاشتې مقابله وه نونفس نه خوشحاله کیده یعنې مریدي ته یې نه پرېښودلم چې زه مرید شم هغه به راته ویل چې هغه احترامات اوعزتونه به ټول درڅخه پاتې شي کله به شیطان داسې فکرونه اوسوچونه راواچول چې علمي خدمتونه به ټول درڅخه پاتې شي خوله یوې لوېې مقابلې چې شپاړ میاشتې وخت یې واخیستلو ماته یودبې هوشي حالت پیښ شو اوداحالت ماته له ډېروسوچونواوفکرونوڅخه پیداشوی ؤحتی زه به ونورځیدم طبیبانوته یې بوتلم هیچامې علاج نشوای کولای حکیمانوبه داویل چې داروحاني مرض دی وایي چې له شپاړومیاشتووروسته خدای ﷻ ماته الهام وکړ اوروان شوم دشام په لوري باندې دمشق ته ولاړم هلته مې دیوچانه بیعت وکړ اوبیا مې ددمشق په جومات کې اعتکاف شروع کړ په هغه اعتکاف کې ماته یوڅه اسرارپیداشول وروسته دحج موقع رانږدې شوه نومې

ویل چې راځه دحضرت ابراهیم ﷺ د استوګنې له ځای نه روان شه
دحضرت نبي کریم ﷺ داوسېدلو ځای یعنې حرمینوشریفینو ته هلته
چې کله راغلم بیاچې په دې ځای کې ماته څومره اسرارپیداشول
اوحقیقت دعلم چې په دې مقام کې ماته معلوم شو نودی وايي چې
زه یې له بیانولوڅخه عاجزیم چې په ژبه یې درته بیان کړم خویوازې
دومره به ووایم چې که فرض یې کړه ددنیا ټول هوښیاران اوپوهان
رایوځای شي اووايي چې موږ ددغواولیاوو نه پرته په نوروخلکو
کې ښه اخلاق پیداکړو نوددنیاټول پوهان اوهوښیاران به په دې خبره
کې غلط اوبې ځایه وي .څکه یوانسان چې ولي کېږي نودی به په
اخلاقو دحضرت نبي کریم ﷺباندې ملبوس وي بیابه ولایت ته
رسیږي چې دهغه دسنتوتابعداري به کوي اودسردارددوکونین
داخلاقوصفت خوالله تعالی په قرآنکریم کې کړی دی ﴿ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ
خُلُقٍ عَظِيمٍ ۝ ﴾ ته دډېرولویو ،لویواخلاقوخاوندیې نودولي سینې
ته دحضرت نبي کریم ﷺدسینې څخه فیوضات حاصلیږي په هغه
کې دهغه مبارک اخلاق پیداکېږي نودحضرت نبي کریمﷺ تراخلاقو
ښه اخلاق په ټوله نړۍ کې دهیچاهم ښه ندي تیرشوي .

نوامام غزالي صاحب وايي چې دغه لاره ده که سړی په اخلاص
باندې یې ونیسي بیابه هغه اسرارورته پیداکېږي چې په دنیاکې په
مدرسوکې نه زده کېږي هغه په ظاهري درس اوتدریس کې نه
پیداکېږي علم اوعمل چې اخلاص نوي ورسره ملګری شوی هیڅ
ګټه نه لري خواخلاص چې پیداکیږي نوپه دې لاره کې پیداکیږي.

**وآخردعوانا ان الحمدلله رب العلمین**

# (۳۲) مجلس

## دتقوا او اصلاح شرطونه او اسباب

### د تقوا اقسام

تقوا په درې قسمه ده (۱)دعوامو تقوای (۲)دخواصو تقوای (۳) داخص الخواصو تقوا

دعوامو تقوا داده چې صرف کلمه شریفه ووایې او دشرک اوکفر نه پرې خلاص شي .په عامه معنا هغه ته متقي ویل کیږي .

دخواصو تقوا داده چې دخدای پاک ﷻ اوامر په ځای کړي اودنواهیونه ځان وساتي.

داخص الخواصو تقوا داده چې دخدای پاک ﷻ اوامر په ځای کړي اوله نواهیونه ځان وساتي ،خپل سر اوخپل روح دهغه شیانو نه وساتي چې دخدای پاک له معرفت ،دخداوندمتعال له ذکر نه انسان مشغوله وي.

اوس داخوا دتقوا مراحلې وي نوتقوابه په انسان کې څرنګه پیداکیږي ،هرانسان داغواړي چې زه دې دداسې رتبې څښتن وای چې خداوندمتعال له مانه راضي وای، دخدای پاک ﷻ دیدار ماته په نصیب شوی وای . جنت ماته په نصیب شوی وای . داخو الحمدلله دهرمسلمان امید ده،هرمسلمان داعقیده او ارزو لري چې کاشکې

مانه خدای پاک ﷻ داسې مقام اوسلسله راکړې وای چې زه ښه ملا شوی وای، زه ښه صوفي وای، اوزه ښه بزرګ وای.
خودا تقوا چې پیداکیږي ددغه لپاره کتابونو لارې بیان کړې دي چې سړی به په هغولارو پسې کوشش کوي ؛نوامید شته چې خداوندمتعال انسان تریوه مقام پورې ورسوي څکه دخدای پاک ﷻ وعده ده ﴿ وَٱلَّذِينَ جَٰهَدُواْ فِينَا لَنَهۡدِيَنَّهُمۡ سُبُلَنَاۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَمَعَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ۝ ﴾ خدای پاک ﷻ وایې چې څوک زما په لار کې کوشش وکړي ،زما رضا غواړي، زما معرفت غواړي، داسې معرفت غواړي چې هغه دنیکو خلکو ده ؛نو زه دهغو ملګری یم ،زه به لارې وروښیم چې په هغو لارو دی ماته را رسیږي،اوخداوندمتعال دمحسنینو چې مراد ورنه مخلصین دي اوخدای پاک ﷻ دمخلصینو ملګری ده.
څومره چې سړی پدغه طلب کې مخلص شي چې د خدای پاک رضا غواړم څومره چې پکې مخلص دغومره دخداوندمتعال رحمت په هغه باندې زیاتیږي،دهدایت لار ورته خلاصیږي، بیا خدای پاک ﷻ هغه ورته ښیي چې هغه ددله وس نه وتلې خبره وي.
ددې وجې نه په حدیث شریف کې راځي حضرت رسول الله ﷺ فرمایي:
**﴿من عمل بماعلم ورثه الله علم مالم یعلم﴾** یعنې څوک چې په خپل علم باندې عمل وکړي ،داخو اختیاري شی دی په خپله خوښه یې زده کړه اوعمل پرې وکړه،خدای پاک ﷻ به داسې علم در زده کړي چې له دینه مخکې دتانوو زده، دده بې اختیاره شی ،دده بې کسبه شی به خدای پاک ﷻ ورته ورکړي، چې علم مکاشفه ورته

ویل کیږي ،الهمات ورته ویل کیږي؛نوهغه کار چې دانسان په وس کې دی هغه وکړي ،مجاهده کوشش وکړې زده یې کړي اوبیا یې په ځان عملي کړي؛نوخدای پاک ﷻ دحضرت رسول الله ﷺ په مبارکه خوله باندې وعده ورکوي چې هغه شیان به خدای پاک ﷻ وروپیژني چې هغه دده په س کې نوو(وراثة) چې هغوته میراثي شیان ویل کیږي چې انسان ته بې کسبه پیداشي،پلار مړ،وروړمړ، قریب مړ دهغه دنیا سړي ته پاتې شوه ،نه دده لاسونه وربندي تناکې ،نه پښې پرې ستړې بلکې هیڅ نه وو شوي،بې دښه اوبد نه خدای پاک ﷻ ده ته په میراث ورپرېښوده.

نودد غه هم دامعنا ده چې علم مکاشفه ،علم فراست اوالهمات چې پیداکیږي داپه هغه علم چې دتاپه اختیارکې ده هغه عملي کړي،په هغه عمل وکړي چې ددتاپه اختیارکې دي؛نوبیا دخدای پاک ﷻ له خوا موروثي علم بې اختیاره به تاته داسې شیان درښیي چې هغه به دتا په اختیار کې نوي، په هغه به دخدای پاک ﷻ ددین لارې درته خلاصي شي، بیا به درک هم نه درته لګیږي چې په دې عمل خدای پاکﷻ رانه راضي کیږي، اوپه دې عمل زما نه ناراضه کیږي.

داکشفیات یوموروثي علم ده، چې علم لدني ورته ویل کیږي او دخدای پاک ﷻ له طرف نه ورکول کیږي ؛خوکتابونولیکلي دي چې کشفیات څومقامه لري چې دچادزړه حال سړي ته خدای پاک ﷻ معلوموي ،دقبرونوحال خدای پاک ﷻ سړي ته معلوموي،حتی دعبادت حال خدای پاک ﷻ سړي ته معلوموي چې داعبادت اوس قبول ده اوکه نه ؟

یو ولي یووخت کې په ډېربنه حضور، په ډېربنه اخلاص باندې لمونځ وکړ بیا چې خپل لمانځه ته متوجې شو چې خپل لمونځ یې ولید چې په سترګوړوندۍ نودی خپل پیرته ورغی چې ماډېر په بنۀ حضور، په ډېر بنه اخلاص، په ډېره عاجزي باندې لمونځ وکړ؛ خوچې زه په خپله خپل عبادت ته متوجې شوم زما دلمانځه سترګي ړندې وي.

هغه ورته وویل چې په لمانځه کې خوبه دې سترګې پټې نه وې نیولې ؟ ده ورته وویل چې هوا سترګې خومې پټې نیولې وې.

ماپه دغه نیت باندې سترګې پټې نیولې وې چې حضور مې بنه برابر شي. ده ورته وویل چې دشریعت خلاف کاردې کړی، په شریعت کې په لمانځه کې دسترګوپټول مکروه دي ؛نو دامیراثي اولدني علم ګورئ، هلته لمونځ ورته معلوم شو اوهلته یې نقصان ورته معلوم شو.

نوهغه کوم شی چې دسړي په اختیارکې ده چې ظاهري علم ده، چې په دغه ظاهري علم عمل وکړي بیا خدای پاک ﷻ داسې میراثي علم وربه برخه کوي چې هغه دده په اختیارکې نه دي، بیا په خپلو نقصاناتو هم پوهیږي.

## اولیاووته خدای پاک ﷻ په حرام خوراک خبرورکوي

په کویټه کې زمونږ استاد شیخ الحدیث چې دخواجه خان محمد صاحب خلیفه ده، مونږته یې قصه کوله چې په پنجاب کې یوپیرۀ ډېرنیک سړی ؤ (دطالبي دوخت خبره یې راته کوله ) ددغه پیر

صاحب یوپولیس مرید ؤ هغه خوواري ډوډۍ دعوت ورته وکړخوهغه به نه ورسره تلو، اخیر هغه مزدوري وکړه دمزدوري په پیسو یې هرڅه تیارکړل بیایې ورته وویل چې دپولیسي دتنخوا روپۍ نه دي، درشوت روپۍ نه دي بلکې په خپل لاس مې ګټلي مزدوري مې وکړه په هغه مې هرڅه اخیستي اوبیا مې تاته ډوډۍ کړي. نودغه مُرشد یې چې دشپې ورسره میلمه شو ډوډۍ یې وخوړه بیاچې سهارشو دغه پولیس چې دده مرید ؤ ورغلی دده پوښتنه کوي نوهغه ورته وایې چې خدای پاک دې تباکړه ! لکه چې زه دې تباکړم.

داپه مادې څه حرام خوړلي ؤ، زما په نس کې ټوله شپه سپې غپېدل څکه په مادې حرام خوړلي. ده ورته وویل چې ټول شیان مې مکمل دمزدوري په روپیو اخیستي ؤ ده ورته وویل چې نه یوڅه شی شته ؛نوولاړ دخپلې ښځې نه یې پوښتنه وکړه چې پدغه خوراک کې خوبه تادزاړه کور څه شی نه وو ورګډ کړي؟ هغې چورت وواهه وېې ویل چې یووخت کې تاکومه مالګه دموټررا وړې وه هغه مالګه مې وراچولې وه . نوره مالګه په کورکې نوه ،غوړي،وړه دترکاري نوې شیان ټول په پاکو روپو ؤ خو مالګه ناپاکه ورګډه وه ،هغه ولې ته خدای پاک ﷻ فراست ورنصیب کړچې په خپل نقصان پوهیده چې یو مالګه په ډوډۍ کې ناقصه شوه دهغه علم هم خداوندمتعال ورکړ چې په ماحرام خوړل شوي دي.

## یوه خُرما یې په اشتباه وخوړه څلوېښت شپې یې کشف بند شو

حضرت ابراهیم ابن ادهم رحمه الله یولوی ولي الله تیرشوی ده ، دامام صاحب شاګرد ده ، ډېرکشفیات یې درلودلو یووخت کې کشف ورنه ورک شو، بیا یو ځای چې دجمعې په ورځ به اولیاء هلته جمعه کیدل هغه ځای ته ورغی چې ښخوا ورته معلوم ؤ

نوره تیاره وه اولیاء چې راروان شو چې یورانتوت ویې ویل چې نن خوپه جومات کې څوک نابلده ده، هغه بل ورته وویل چې ابراهیم ابن ادهم ده . وایې څرنګه راغلی دی ؟ وایې چې څلوېښت شپې کیږي چې خپل حال ورنه ورک شوی ولې ؟ وایې چې دیودکاندار نه یې خرماوې اخیستي هغه خرما یې چې ورتللي تله پورته شوه یوه دانه دتلې نه کوزه ولویده ، دکاندار دهغې په عوض کې بله خرما ور واچوله ، خوده ته په ګمان کې دا ورغبلل چې هغه کوزه پرته خرما زما وه ، هغه یې راواخیسته او په اشتباه باندې ویې خوړله ؛نوهغه کشفیات یې بندشول . بیرته ورغی هغه دکاندارته یې روپۍ ورکړې چې مایوه دانه دتول نه زیاته خرما خوړلې اوس داچې سړی په نیکي روان شي خدای پاک ﷻ دومره اندازه. صفایي ورته حاصلوي ددغې وجې نه حضرت رسول الله ﷺ وایې :

(استفت قلبك) دخپل زړه نه فتوا وغواړه !

( دع مایریبك الی مالایریبك ) چې په کوم شي کې شک درلویده نوپرې یې ږده. خودامقام دخواصو ده چې سړی په شریعت

خان برابر کړي خدای پاک ﷻ يې تزکيه وکړي، بيا زړه دمسلمان له ګناه نه کرکه کوي، که نه پوهيږي کشف نلري، خوچې هغه ناروا ځای ناروا خوراک کوي زړه يې بندشي شک اوتردد ورته پيداشي.

## دانسان داصلاح لپاره اول شرط بيعت ده

ددغه لپاره مخکې موهم بيابيا ويلي دي حضرت امام غزالي قدس الله سره ددې لپاره چې دانسان اصلاح وشي څلورشرطونه بيانوي:

**اول شرط:**

اول شرط داذکرکوي چې هرڅوک داوغواړي چې دی متقي شي، دده اصطلاح وشي، اوهرڅه يې په شريعت برابرشي نوديوکامل پير نه دې بيعت وکړي.

اجمالاکامل پيرهغه ته وايې چې په شريعت باندې عالم وي،په خپل علم باندې يې عمل کړی وي، يعنې عمل کونکی وي اودخپلو مشائخو سره مخلص وي ،په صحبت کې يې اثروي، چې په مجلس کې يې په خلکو اثرراځي، نودغه ته په اصطلاح دشريعت کې کامل پيرويل کيږي.

نوداصلاح اوله طريقه داده چې دکامل پيرنه بيعت وکړي، دکامل پير په بيعت باندې دسړي اصلاح څرنګه راځي؟

وايې ځکه اصلاح راځي چې دی خپل شيخ ته ورځي په اوله ورځ دبيعت دټولو کړو ګناهونوڅخه توبه وباسي، تلقين چې کيږي نوپه هغه تلقين کې دا ويل کېږي که صغيره ګناوې وي اوکه کبيره ګناه وي لکه شرک، ظاهري وي که باطني، که حقوق الله وي اوکه حقوق

العباد. که دمور اوپلار حقوق وي نوپه دغوتولوکې چې له مانه څه تقصیرشوی وي دهغونه زماتوبه ده ،توبه ده، توبه ده. نوپه اوله ورځ توبه ګارشي.

**دوهم شرط:**

دوهم داده چې دهغه پیرله طرف نه تلقین دذکر وشي هغه پیرچې داذکر وروښیي نودده په زړه کې چې دخدای پاک ﷻ نوم ځای ونیوپه هغه نامه باندې،په هغه زړه کې صفایي راځي بیا دانسان په زړه کې دوه ځایونه دي یوځای دملائکودتصرف دی اوبل ځای دشیطان دتصرف دی په حدیث شریف کې راځي چې دهرانسان په زړه کې یوه :﴿لمة من الشیطان﴾ده او: ﴿لمة من الملك﴾ده دانسان زړه چې کله دخدای پاک ﷻپه ذکر لګیاؤ هغه ملائکې بیا الهمات دنیکوکارونوورته کوي، بیا یې نوورځ په ورځ دنیکي طرف ته شوق پیداکیږي ځکه چې ذکرکیږي،شیطان دانسان زړه ته مداخله نه شي کړای ، بې لارې کولای نشي، نوددغه شیخ په واسطه دده دزړه تعلق له ملائکوسره جوړ شي،هغه دنیکي په طرف الهمات ورته کوي، ښهٔ کارېې خدای پاک ﷻ ترپام ورښه کړي اوهغه طرف ته یې کوشش زیات شي اوله بدوکارونو نه یې کرکه پیداشي، ځکه بدخوشیطان ورته ښایسته کوي اودلته دشیطان لاربنده شي، اوکله چې دسړي زړه دخدای پاک ﷻ له ذکر نه غافله وي نوبیا شیطان وسوسې ورته شروع کړي، بیا یې دبدي طرف ته ورځ په ورځ شوق زیاتیږي اودنیکي طرف ته یې شوق کمیږي.

## په خپل مُرشد بدګماني د سوء خاتمې سبب کيږي

يوځل دوړې دوړې طالب په ماسپښين کې راغی اوسخت ډېر يې وژړل. ماورته وويل چې ولې څه پيښه ده؟ ده وويل چې پيښه داده چې زه د دوړې کتابونه اوحديث وايم اوزما ورځ په ورځ دګناهونو طرف ته شوق پيداکيږي اوحديثو اثراوشوق په مابانديې نه راځي. خودېې په وجه تراوسه نه پوهيدم چې داولې؟

نن ورځ غرمه مې خوب ليده چې زما دکمرې ملګرې دمرحوم خليفه صاحب (مولوي فضل الدين) زيارت ته راغلي وي اودروژې د اعتکاف شپې هم نوي،هغه ملګري مې ولاړ شي هلته په اعتکاف کې کيني زه وربسې ورشم پوښتنې ته ،کله چې ورغلم دزيارت مخې ته، لکه د کوچيانو په شان، درې کيږدۍ (خيمې) ولاړې وي. اول په خيال کې داسې راځي لکه دوی چې دهغه سر لرې کيږدۍ (خيمه) کې وي بيا داغږرانږدې شو دمنځ کيږدۍ ته،بيا داغږ رانږدې شو اولې خيمې ته؛نوماته په خيال کې دا راځي چې داخومعتکفين دي اوروژه هم نده،اعتکاف څرنګه کوي؟ اوبيا په زيارت کې څرنګه اعتکاف کوي؟

داسې سوچ مې کاوه چې داماته دنږدې خيمې پرده پورته شوه چې ګورم حضرت رسول الله ﷺپکې ناست ده، اوماته وايې چې ته دخپل شيخ نه بې لارې شوی يې؛نوددغې وجې نه دې ورځ په ورځ دګناه طرف ته شوق زياتيږي ،که توبه ونه باسې اوهغه خپل شيخ خوشحاله نه کړې ؛نوخاتمه دې خرابيږي.

نوده وويل چې مادخوست له محمدانورخليفه صاحب نه بيعت کړی
ؤ بيا دا يوڅه وخت وروسته ماته دطريقت دسلسلې بې اعتقادي
پيداشوه اوپه هغه خپل پيرباندې بدګومانه شوم اوتعلق مې ورسره
کټ شو نوحضرت رسول الله ﷺ راته وويل چې که بيرته دې خپل پير
راضي نه کړي نو ته به بې ايمانه له دنيا نه ځې .

بل ملګري په عين شکل همداسې خوب ليدلی وچې په مدرسه کې
يوڅوک په کمرو باندې ګرځي اوماته وايې چې داپه ماباندې ډېر
ګران ده ځکه چې دمرحوم خليفه صاحب مريد ده ،خوماته حضرت
نبي کريم ﷺ ويل چې ده وظيفه پرې ايښي ده ،دی خرابيږي اوورته
روايه چې بيرته ذکر شروع کړه.

نوداولياء کرامو په تعلق باندې هلته دخدای پاک ﷻ سره دزړه تعلق
پيداکيږي . نواوله لار داصلاح هغه داده چې دکامل شيخ نه بيعت
وشي، بيادهغه سره آدب اواحترام وي ،اخلاص وي ،څومره چې
اخلاص ؤ همدومره اثر پيداکيږي .

**دريم شرط د نيکو خلکو ملګرتيا ده**

داصلاح دريمه طريقه داده چې سړی دنيکوخلکو سره تعلق جوړ
کړي، دهغه چاسره دملګرتيا کوي نوچې ديندراه وي ،هغه خيرخو
اومخلص اوصادق اونيک عمله وي؛نوهغه بيا تاته هم نصيحت
کوي که په تاکې څه بدعملي موجوده وه ته به يې په غرض نه حمل
کوي ته به وايې چې دازما لپاره ښه خبره ده عمل به ورباندې وکړ
،په دغه طريقه باندې دسړي ډېره ښه اصلاح راځي .

**ځلورم شرط ددښمن خولې ته متوجې کیدل:**

داصلاح ځلورمه طریقه داده چې سړی ددښمن خولې ته متوجې شي چې دښمن دسړي عیبونه بیانوي نوسړی پام وکړي چې هغه دښمنان په ماپسې ځرنګه غږیږي هغه عیبونه یې چې واوریدل نوخپل ځان ته به پام وکړي نوچې رښتیاپه ماکې هغه عیبونه وي نودلري کولو کوشش به یې وکړم.

**پنځم شرط دعاموخلکوسره ژندګي تیرول:**

داصلاح پنځمه طریقه داده چې دعامو خلکو سره ژندګي کوي، نوعاموخلکوته به متوجې وي چې په دې خلکو کې چانیک عمل وکړ نوخلک ځومره داحترام اوعزت په سترګه ورته ګوري ،چې دی دځان سره سوچ وکړي چې که ژه هم داسې نیک کار وکړم نوزمابه هم داسې نیک حال وي، اوکه په عاموخلکو کې بدکاري چاوکړه ،خلکو بد ورپسې وویل نودهغه نه عبرت واخلئ چې دغه سړي چې بې لاري ګرځي دخلکو په نظرکې هم ځومره منفور ده ، دخدای پاک ﷻ په نیزیه هم داسې منفور وي.

نوتقوا چې پیداکیږي دهغې لپاره به سړی لارې لټوي ،کوشش به کوي، یوه بهترینه لار داده چې دکامل شیخ سره تعلق جوړ شي، اودهغه سره بیا په اخلاص ژندګي کوي.

# دولایت شرطونه

**اول شرط له خپل شیخ سره محبت:** چې سړی ولایت ته رسیږي نوخپل شیخ سره له محبت اوانقیاد سره سره ډېره ناسته او ولاړه،تګ اوراتګ به کوي اوچې څه حکم اوارشادیې درته کاوه،چې داسې وظیفه وکوه نوهمداسې به کوي بیابه یې مخالفت نه کوي.

**دوهم شرط: ډېر ذکر کول دي**

چې څومره ډېر ذکرکوي دغومره محبت پیداکیږي، دغومره دخداوندمتعال ﷻ سره تعلق جوړیږي،ځکه خدای پاک ﷻ فرمایي چې څوک مایادوي هغه زه یادوم.

اودخدای پاک ﷻ یادونه رحمت ده چې په هغه انسان باندې رحمت وکړي. نوسړی چې دولایت مقام ته ،دخواصودتقوا مقام ته رسیږي، شرط یې داده چې دکامل پیر سره بیعت وکړي، اوبیا دهغه سره محبت،اخلاص، تعلق، ناسته اوولاړه،تګ اوراتګ ،دهغه حکم منل، موجود وي .

عامه طبقه خوڅه کوئ په طالبانو اوملایانوکې بنیادي نقصانات دادي چې ددغوخبرو لحاظ نه ساتي، اول خوچې څوک دچاعیب ورته په ګوته کړي ؛نوهغه یې په غرض حمل کړي.

دوهم داچې څوک دچاعیب ویني ؛نوهغه ورته بنیي نه ،ولې ؟ چې خفه نه شي.

نومخلص ملګری هغه ده چې په تاکې یې عیب ولید اودرته وېښود.
چې داکار مه کوه په دې خدای پاک ﷻ درنه ناراضا کیږي.

**دریم شرط:**

تعلق له خپل شیخ سره اوزمونږ نقصان ذاده چې زمونږ دخپلو مشایخو سره تعلق کم ده، اخلاص کم ده، محبت کم ده، تګ اوراتګ موورسره کم ده، انقیاد مونشته، که دظاهري علم استاد ده که دباطني علم استاد ده.

که یوه ورځ یې خشکه راته وکړه بس نور مونږ ترې مرور یو، لکه چې داپه خپل شیخ اویااستاد باندې احسان باروي چې زه خو دتامرید یاشاګرد یم ،ته ولې خوشکې راته کوې.

حضرت نبي کریم ﷺ وایې (اتقوا فراسة المؤمن فانه ینظروا بنورالله) دمومن له فراست نه ځان وساتي؛ ځکه چې هغه دالله په نظرسره ګوري.

نومشائخ چې کله په تاکې شیان وېني نودهغه په خاطر به خوشکه درته کوي.کله دبعضې اصلاح په خوشکه راځي. کله دبعضې مریدانو اصلاح په وهلو راځي. کله دبعضې مریدانو اصلاح په خفه کولوراځي چې بندیې کړي چې دېر به نراځي. کله دبعضې اصلاح په دې راځي چې دېر کیني.

## له بیعت نه مخکې اصلاح

یولوی عالم یوشیخ ته دبیعت په نیت باندې ورغی هغه شیخ ته خدای پاک ﷻ په باطني فراست معلومه کړه چې دی نهایت کبرجن ۀ

دغرور اوتکبرنه ډک ؤ، نوده ورته وویل چې دبیعت شرط داده چې یوه جمعه به ددغه جومات دټولوخلکو څپلۍ سموي، بیا به زه وظیفه درکوم اوکه نه ،نه یې درکوم، ده وویل چې داعجیبه خبره ده زه ملا،غټ عالم اومدرس یم زه به دخلکو څپلۍ څنګه سموم ؟ ده ورته وویل چې په بله طریقه نشته بیرته ولاړ. ده خودتصوفو کتابونه کتلي ؤ نوفائدې یې لیدلې وي نوبیرته راغی بیایې دغه شرط ورته روایه ،اخربې دځان سره دافیصله وکړه چې یوه جمعه تکلیف تیر کړه نویوه جمعه یې داڅپلۍ سمول شروع کړل.

هغه شیخ ته خداوندمتعال په فراست باطني دامعلومه کړه چې اوس په ریا اخته شوچې خلک بهٔ وایې چې دامولوي صاحب څومره ښهٔ سړی ده دخلکو څپلۍ سموي نوورته ویې ویل چې بس نورې یې مه سموه، اول یې دسمولو نه انکار کاوه اوس یې بیا پرینښودلې نه، چې نه صاحب ! داخودمسلمانانوخدمت ده. نوره واقعه مخکې ذکر شوې.

نوهغو مشائخو کرامو ته خدای پاک جل جلاله فراست ورکړای ري دسړي اصلاح کوي ،خومونږ ته که خوشکه وکړې پدغه ورنه خفه کیږو، که بې وخته ورته راغلو توجه یې راته ونه کړه پدغه ترې مرور کیږو چې ولې یې توجه راته ونه کړه

## حضرت انوارالمشائخ دملاقات په ځای يوائې په سترګې مه شي اکتفاء وکړه

دجناب حضرت انوارالمشائخ مرحوم خليفه صاحب (مولوي فضل الدين) يونفر قيصه راته کوله چې دميرانشاه نه زه اويو څو نور ملګري له حضرت انوارالمشائخ مرحوم خليفه صاحب سره دحضرت امين جان آغاصاحب کورته په سفر لاړو، هلته دماښام په وخت کې ورسيدو، چې دکوردروازې ته ورسيدو نوحضرت امين جان آغاصاحب له کورنه راووت سترګې مشې اوهرکلي يې راته ووايه، دسترګې مشې نه وروسته حضرت امين جان آغاصاحب ورته ووېل چې صاحب ! تاسې کينئ هلته ماته چاتليفون کړی ده څه ضرور کار ده هتله ورځم انشاء الله په نيم ساعت کې بيرته راځم.
جناب خليفه صاحب ورته ووېل چې بس دومره کافي و، دغه ملګري وايې چې مونږ ډېرپه زړه کې خفه شو (دغه طالبان و اومريدان ؤ چې هغه وايې چې زه په نيم ساعت کې بيرته راځم اوجناب خليفه صاحب ورته وايې چې بس دوغومره کافي ده، دميرانشاه نه مونږ دومره کرايې ولګولې اودلته موصرف په ولاړې وليد.
کله چې حضرت امين جان آغاصاحب روان شو مونږ بيرته را روان شو نوجناب خليفه صاحب مونږ ته مخ راوګرځاوه چې ګورئ پام کوئ ددغه دامعناده چې زه دومره غټ سړی يم زه درته راغلی يم نه

به خامخا ماته خان راخلاصوي. هغه خپل کار که هرڅومره ضروروي
نو پرېږدي به يې او ماته به خامخا خان راخلاصوي.
مونږ راغلي دده د پوښتنې په نيت ؤ پوښتنه وشوه نور چې دى
مشغول ؤ دا بيا بې ادبي ده،دمشائخو سره چې دې خپل خان ته
رامتوجې کوي چې خپل کار زرخلاص کړه اوزه دلته درته په انتظار
ناست يم. نوزه چې دلته ناست واى نوده به خپل کار په منډه
خلاصولو ولې چې دميرانشاه خليفه صاحب راغلى ؟
ګورئ حضرت انوارالمشائخ قدس الله سره العزيز دحضرت صاحب
خليفه ؤاوحضرت امين جان آغاصاحب دعمر له لحاظ دده دزامنو
دلمسيو په ځاى ؤ لکن دمشائخ کرامو دنسبت په خاطر باندې
دومره اندازه احترام چې دميرانشاه نه ورغلى هلته صرف په سترګې
مشې اکتفا کوي،بس دغه مونږ ته کافى ده چې تاته تکليف ونه
رسيږي.
داسې هم پيښېږي چې په جمعوجمعو موقع سرې ته پيدانه شي
اوپه انتظار وخت تيروي.

دمجدد الف ثانى قدس الله سره د مُريدانو شکايت او دده ځواب

حضرت مجددالف ثاني (رحمه الله) چې په طريقت کې ډېرلوى
بهترين شخص تيرشوى ده نوده ته به چې کله څينې عوام سرمايه
دارخلک راغلل نودى به ورته راووت اوتريوساعت پورې به ورسره
ناست ؤ اوچې غريبان ملنګان مريدان به چې راغلل نوهغوى به په

نتظارناست ۋاوزر به نه ورته راووت، نودې مریدانو ته په زړه کې دا
شتباه پیداشوه چې دی دغنیانولحاظ کوي، دمالداروخلکو لحاظ
کوي ،هغوی ته زر راوځي،ورسره کیني اودستي چای مړی ورته
راوړي اومونږ دلته شپې اوورځې په انتظار ناست یو ،زمونږ
ملاقات ته نه راوزي،هغه ته خداوندمتعال علم باطني ورکړی ۋ،د
دوی په اشتباه باندې پوه شو، له کور څخه راووت اوورته وې ویل
چې گورئ بچیانو زماله تاسې سره دزړه تعلق ده،میلمه چې چاته
ورغی شرعا حق پرې لرې چې دهغه به احترام کوې ،خودهغوی
خلکو زمونږ سره همدومره تعلق دی چې (السلام علیکم وعلیکم)
ستړې مشې. نور دوی نه زمامریدان دي،نه بیعت شته ،نه محبت
شته ،نه اخلاص شته،لنډه داچې نورهیڅ نشته همدومره کارېې ده
نومیلمه چې راغی دمیلمه احترام خوبه سړی کوي.
اودتاسوسره خوشپه اوورځ زماتعلق ده ،که تاسې زماسره په مجلس
کې ناست یې اوکه نه یې ناست زه دتاسې په غم باندې غمجن یم،زه
دتاسې په باب کې خداوندمتعال ته عاجزي کوم زه دتاسې په باب
کې خداوندمتعال ته زاري کوم او ژړاوې کوم که تاسې له ماسره
موجود وئ اوکه نه وئ موجود، زما له تاسې سره دزړه تعلق ده
خوډېر مُریدان په دې باندې نه پوهیږي چې فلاني ته راووت بس
ورسره وې خندل ،ورسره کیناست اوما دومره انتظار وکړ.
نوکثرت ملازمت دخپل شیخ له محبت اوتابعداري سره ،محبت به
هم وي،حکم به یې هم مني بیا خداوندمتعال ﷻ سړي ته دهدایت

لاړي خلاصوي، دتقوی مقام ور نصیب کوي ،دولایت مقام به ورته ورکوي.

دېرغټ غټ مشائخ په غټ انتظارباندې وخت تیروي، په یوځای کې علماء کرام وي، غټ غټ شیخ الحدیثان وي، هغه دملاقات له پاره وخت تیروي، دوه شپې، درې شپې وکړي بیا هم دملاقات وخت نه ورته پیداکیږي ،خولکن دوی ته یې هغه مقام معلوم وي.

خپل پیرته به خپل ځان داسې سپاري لکه مړی چې په تخته باندې پروت وي هغه سړی چې غسل ورکوي چې که په سریې اوبه ورتویې وي اوکه په پښویې ورتویه وي، که په ښی طرف یې اړه وي اوکه په چپ خوایې اړه وي خومړی دانه وایې چې اول مې سر پرې مینځه بیا پښې پرې مینځه یا بس ده نورمې مه مینځه صفا شوم ،نور په تکلیف یم.

نوداسې به دمړي په شکل ځان سپاري لکن زمونږ مطالبې وي خواهشات وي، دانقصانونه موږه دغو کې دي ځکه کار ډېر په مخ نه ځي، هغه مُرید چې دهغوی محبت دخپلو مشائخو سره زیات وي، په مُریدانو کې یې دستي اثر معلومیږي، وظیفې یې هم زر زر پخیږي، کار یې هم زر زر په مخ باندې ځي.

حضرت دوست محمد کندهاري صاحب ،چې د ډېره اسماعیل خان په درابن کې یې زیارت دی، په یوه کال کې دی دڅلورو طریقو پیر شو.

خودومره منقاد و چې دخپل شیخ بیت الخلاء یې په لاس باندې پاکوله،دومره خدمت یې کاوه.

داکابرو ددیوبند دعلماؤ یواستاد بیان کاوه چې یو استاذ تللی ؤ دیو بل استاذ پوښتنې ته ،هغه مړؤ وایې چې دهغه دکور دبې بې ښپلکې یې په سر اوسترګو باندې ایښې وي اوژړل یې چې ای خداوندمتعاله ! که دخپل استاذ په باب کې زمانه بې ادبي شوې وي،دهغه حقوق مې نه وې په ځای کړې نوخدایه ! دده دناموس ښپلۍ زه تاته وسیله کوم. نوهغه ښپلۍ یې خدای پاک ﷻ ته وسیله کولې دومره ادب اوانقیاد پکې موجود ؤ .

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین







# (۳۳) مجلس

## دمحبت اصلي سبب

بينادي شی خوداده چې هرکار سړی کوي هغه بې علمه سرته نه رسيږي ،که څوک هرعمل دعبادت کوي خوچې نيت پکې صفا نه وي معرفت نوې ترهغه وخته هغه عمل نه قبليږي، نوبنيادي شی داده چې اول سړی علم حاصل کړي چې ددغه علم په حاصلولو باندې معرفت دخدای پاک ﷻ،معرفت دحضرت رسول کريم ﷺ ،معرفت دامورو ددين ورته پيداشي،نوبيا به دهغه خپل معرفت اوعلم سره موافق عمل کوي اوپه هغه کې به مخلص اوسيږي ځکه چې حضرت عمر فاروق ﷺ دحضرت کعب ﷺ نه پوښتنه کوي چې خاوندان دعلم څوک دي؟ هغه ورته وايې چې خاوندان دعلم هغه څوک دي چې په خپل علم باندې عمل کوي ،کوم خلک چې په خپل علم باندې عمل نه کوي هغوی ته علماء نه ويل کيږي.

اوس نواول بنيادي شی علم ده، دعلم په برکت دسړي سره دالله تعالى محبت هم پيداکيږي دحضرت رسول الله ﷺ محبت هم ورسره پيداکيږي ،ددين محبت هم پيداکيږي، په صحابه کرامو کې چې دچا څومره زيات محبت ؤ،څومره زيات علم ؤ دغومره دهغوی دالله تعالى ﷻ اودرسول الله ﷺ سره محبت هم زيات ؤ،دحضرت نبي

کریم ﷺ په ټول امت کې اعلم ترین حضرت ابوبکر الصدیق رضی الله تعالی عنه ؤ خوځومره چې خداوندمتعال دته علم زیات ورکړی و دغومره دخدای پاک ﷻ خوف په ده باندې غالب ؤ،دغومره یې دخدای پاک ﷻ اوحضرت رسول الله ﷺ سره محبت زیات ؤ چې سړی دمحبت مقام ونه پېژني نومحبت نشی کولای.

## دحضرت ابوبکر الصدیق رضی الله عنه دمحبت واقعه

حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه چې په ټولوخلکو کې دزیات علم (اعلم الناس) خاوند ؤ دده دحضرت نبي کریم ﷺ سره څومره محبت ؤ نودهغه دمحبت یوه واقعه به دلته ذکر کړو:
په اسلام کې اولنی خطبه چې په حرم شریف کې په ښکاره ویل شوې ده هغه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ویلې ده، حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه له، حضرت رسول الله ﷺ نه التماس کوي چې یارسول الله! ترڅو به دادین موږ پټ ساتو ته اجازه وکړه چې ددغه دین دعوت په ښکاره خلکوته شروع کړو.
حضرت رسول الله ﷺ ورته وایې چې مسلمانان تراوسه پورې ډېر کم دي دکفارو دمقابلې توان نکې نشته تریو څه وخته پورې پوشیده اوپټ دعوت په کار دی. خوحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ډېر اصرار کوي چې نه ښکاره دعوت شروع کوو، نودی دصحابه کرامو سره راووت په حرم شریف کې یې خطبه په جهر اوپه زوره شروع کړه، دعوت الی الله، دتوحیداوشهادت کلمه یې په ښکاره باندې شروع کړه، کفارو له هر طرف نه په ده باندې په یو وار باندې حمله وکړه

لکه یوسړی چې په چاباندې حمله کوي اودومره بې اندازې زیات بې وواهه چې دډېرو وهلو له امله بې هوښه پرېوت، مخ مبارک، پوزه مبارکه، غوږونه مبارک اوټول وجود مبارک یې په وینوککړشو. تردې وواهه چې نوردخلکو داخیال شو چې نور مړکیږي نویې پرېښود ،دده هغه تربوران چې لاتراوسه یې اسلام نه و منلی، راغلل اوله دغه ځایه یې کورته وېوړ، دماښام په وخت کې چې کله دی په هوش راغی اولنی خبره یې داوکړه چې دحضرت رسول الله ﷺ څه حال ده، هغه تربوران ورسره ناست ؤ، هغه خوپه اسلام لاتنه ومشرف شوي،هغوی ته دحضرت رسول الله ﷺ قدر نه و معلوم، نوهغوی ورته وویل چې تاته داټول تکلیف د ده له وجې نه پیښ شوی ، دده محبت په وجه دومره ووهل شوې چې زمونږ دژوند توقع نه ؤاوتابیا له ټولونه اول دحضرت رسول الله ﷺ دحال پوښتنه کوي؟ نودوی له دې مجلس نه ورنه پورته شول اونفرت یې ورنه وکړ.

دده مبارک مور حضرت ام الخیر ﷣ ،چې لاتردغې ورځې پورې په اسلام نه وه مشرفه شوې، تربوران وایې چې مونږ لاړو دژوند توقع پیداشوه خوڅه شی ورته پاخه کړه چې وېې خوري ،تکلیفونه یې څه کم شول .

دوی چې ووتل موریې دخوراک څه ورته تیارکړل خوحضرت ابوبکر صدیق ﷺ له خوراک کولو انکار وکړچې والله چې ترهغه به زه خوراک ونه کړم تر څو چې دحضرت رسول الله ﷺ په حال خبر شوی نه یم.

دمور شفقت زیات وي اګر که په اسلام لانه ده مشرفه خو اولاد ده ورته وایې چې زه رسول الله ﷺ څۀ پېژنم چې چیرته دی، چیري یې پوښتنه وکړم؟ دی مبارک ورته وایې چې دام جمیل رضی الله عنها (چې دحضرت عمر فاروق خورده) کورته ورشه هلته دی اوله ام جمیل رضی الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې رسول الله چیرته ده اوځنګه ورځ یې تیره کړې ده؟

ام الخیر رضی الله عنها چې دده مبارک مور ده دحضرت ام جمیل رضی الله عنها کورته ورغله هغې ته وایې چې زما زوی نن خلکو دحضرت محمدصلی الله علیه وسلم په ملګرتیاکې دومره وهلی چې تراوسه پورې بې اوښه پروت ؤاوس یې دژوندڅۀ توقع پیداشوه خوهغه دخوراک نه قسم کړی چې زه به ترهغه خوراک ونکړم چې ترڅوزه درسول الله ﷺ له حال څخه خبر شوی نه یم اوس یې زه تاته راولیږلم که تاته معلومات وي چې په حضرت رسول الله ﷺ باندې ورځ څنګه تیره شوې ده اوچیرې ده؟

هغې مبارکې ددې په خاطرچې هغې دحضرت رسول الله ﷺ حال هرچاته نشوای بیانولی اوام الخیر هم تردې وخته پورې نه وه مسلمانه نوورته وېې ویل چې زه محمد ﷺ نه پیژنم ،نه د تا زوی پېژنم خوداچې تایې تکلیف بیان کړ درخه چې درسره ورشم پوښتنې ته چې اوس څنګه دی.

دواړه جوړه راغلې چې دحضرت ام جمیل رضی الله عنها په صدیق اکبر ﷺ باندې سترګې ولګیدلې چې مبارک وجودیې ټول په وینوکګردی ،مخ یې پرسیدلی دی،نوبې اختیاره داسلام په مېنه دخولې نه چیغه

ورتله اوپه ژړاشوه چې خدای دې داخلک تباکړي چې تاته يې دحضرت رسول الله ﷺ په محبت کې دومره تکليف درکړی.

حضرت صديق اکبر ﷺ بياهم ورته وايې چې ماپرېږده حضرت رسول الله ﷺ څرنګه ده اوچيرته دی ؟ دې ام الخيرته اشاره وکړه چې مور دې ناسته ده که حال ووايم هغه به کفاروته خبر وکړي.

ده ورته وويل چې پروا يې مه لره . ام جميل ﷺ ورته وويل چې حضرت رسول الله ﷺ دزيدبن ارقم ﷺپه کور کې ده اوالحمدلله په هغه ورځ بنه تيره شوه ،هغه ته څۀ تکليف نه دی رسيدلی.

مور يې خوراک ورته را واخيست خوهغه بيا قسم کوي چې په خپلو سترګومې نه وې ليدلی ترهغه وخته پورې به زه خوراک ونه کړم.

اخيرمور يې مجبوره شوه له کوره بهر ووتله چې کله ټول کفارخپلو کورونو ته تنوتل داراغله اوحضرت صديق اکبر ﷺيې له لاس څخه ونيو په خپلو پښونه شوای تللی لاسونه يې په دې باندې واړول اودزيد بن ارقم ﷺ کورته ورغلل، کله يې چې په حضرت رسول الله ﷺ باندې سترګې ولګيدلې اودحضرت رسول کريم ﷺ سترګې په ده باندې ولګيدلې نوحضرت رسول الله ﷺ په ژړا شو له دوی سره دمجلس ټول صحابه کرام په ژړا شول،حضرت ابوبکرصديق ﷺته حضرت نبي کريم ﷺ غيږ ورکړه او وايې چې خدای پاک ﷻ دې داخلک تباکړي چې تاته يې داتکليف رسولی. بيادی ورته وايې چې يارسول الله ﷺ! زما دمورپه باب کې دعا وکړه چې خدای پاک ﷻ يې په اسلام مشرفه کړي. هغه ﷺ دعاوکړه،خدای پاک ﷻ دده مور مبارکه هم په اسلام مشرفه کړه.

نوحضرت ابوبکر صدیق ﷺ سره دخپل خان غم نشته، دخوړوغم ورسره نشته ،دمرګ غم ورسره نشته بلکې په هغه سخت مهال هم دخپل محبوب حضرت رسول الله ﷺ پوښتنه کوي چې دحضرت رسول الله ﷺ څه حال ده؟

## دحضرت عبدالله بن زید ابن عبدربه ﷺ واقعه

حضرت رسول الله ﷺ چې کله له دنیاڅه رحلت وکړ نوحضرت عبدالله بن زید ابن عبدربه په خپل باغ کې کار کاوه چاورته وویل چې حضرت رسول الله ﷺ وفات شو،نودی وایې ای خدایه ! نوري دې زماسترګې ړندې کړه چې په بل چاباندې ونه لګیږي ؛ نوپه هغه ځای باندې یې خدای پاک ﷻ سترګې ړندې کړي.

## له رسول الله ﷺ سره داوښې عشق

انسانان خوڅه کوئ په حیواناتوکې دده مبارک سره دومره محبت و چې دده یوه اوښه مبارکه چې قصوانومیده ،دده ﷺ سره یې دومره مینه اوعشق درلود چې دوفات نه وروسته به یې له سترګو اوښکې بهیدلې اوترهغه یې خوراک ونکړ ترڅوچې مړه شوه.
له اوښې سره دومره احساس وچې رسول الله ﷺ یې نه لیده خوراک یې نه کاوه.

نوسړی چې څومره خداي پاک ﷻ ته نږدې کیږي دغومره یې محبت زیاتیږي اوددې ټولو بنیادعلم ده .

نولنده داچې مونږ اوتاسو چې که دطریقت کارکوواویادعبادت په هره شعبه کې لګیایو باید چې اول نیت ورته صفا کړو، دخدای پاک ﷻ درضا له پاره هغه کار وکړو، اوبیادهغه سره موافق عمل وکړو نوبیابه دمحبت نمونه په مونږ کې ښکاره کیږي چې رښتیا داخلک دحضرت رسول الله ﷺ سره محبت لري، داخلک دالله تعالی ﷻ سره محبت لري، اوبیا به خدای پاک ﷻ هغه اثر ورباندې مرتب کوي چې صحابه کرامو ته خدای پاک ﷻ کوم حال ورکړی و.

په قران کریم کې باربار راغلي: ﴿ رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُواْ عَنۡهُۚ ﴾ الله تعالی ﷻ دصحابه کرامو څخه راضي ده، صحابه کرام له الله تعالی ﷻ څخه راضي دي. ځکه چې په قرانکریم کې ددوی منقبتونه اوصفتونه ذکر کیږي چې په خپل علم یې عمل کړی و، اخلاص پکې و، اوهرڅه یې دخدای پاک ﷻ اودرسول الله ﷺ درضا په خاطر کول. نوښنیادي شی داده چې موږ په علم کې کوشش وکړو اوپه علم باندې عمل اوالهي محبت پیداکړو چې په هرشي کې مودخدای پاک ﷻ اودرسول الله ﷺ سره محبت پیداشي، نوخداوندمتعال ﷻ به یې په قول اوعمل کې برکت پیداکوي اوکه بې محبته اوبې اخلاصه وي نوبیادغه انسان به ځان ستړی وي خولکن هیڅ ثمره به په هغه باندې نه وې مرتبه.

وآخردعوانا ان الحمدلله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا و سندنا وشفيعنا و مولانا

محمد وعلى آله و اصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين

# (۳٤) مجلس

## دحضرت نبي کريم ﷺ اوصحابه کرامو زندګي

کوم نعمتونه چې خدای پاک چاته ورکړې وي دا امانت دي ددغو نعتونو پوښتنه شته، دحضرت نبي کريم ﷺ اوصحابه کرامو زندګي ته چې سړی نظروکړي چې دوی په ابتدايي مرحلوکې څومره تکليفونه تيرکړي اوبياڅومره دخدای پاک ﷻ خوف ورسره ؤ په مامولي نعمت څومره دخدای پاک ﷻ نه ډاريدل.

يوصحابي په کورکې پروت ده مريض ده،نورصحابه کرام يې پوښتنې ته ورغلل دی ژاړي،هغوی ورته وايي چې ولې ژاړې؟ حضرت رسول الله ﷺ چې ددنيا نه رحلت کاوه له تانه راضي ؤ،صديق اکبر رضی الله عنه چې ددنيانه رحلت کاوه له تانه راضي ؤ،خداوند متعال ﷻ دحضرت رسول الله ﷺ په واسطه په تاباندې زيری دجنت کړی ده ، نوته ولې ژاړې؟ ده ورته ووېل چې په دې نه ژاړم چې زه مړکيږم په دې ژاړم حضرت حمزه رضی الله عنه چې شهيد شو دومره شی دده نه ؤ چې دی موږکې پټ کړی وای ،يوه شيړۍ يې درلوده چې سربه يې پټ کړ پښې به يې لوڅې شوې اوچې پښې به موږتې کړې سربه يې لوڅ شو اخر مودسرطرف په هغه شيړۍ وريټ کړی پښې موږ به وښوکې ورپټې کړي،هغه ترمانه بهترؤ پداسې حالت دفقرکې

شهید شو زه مړ کیږم زما د کوټې په کونج کې اوس هغه ده څلورزه روپۍ پرتې دي، په دې باندې ژاړم چې دنیا مې ډېره شوه .
په روایت کې راځي چې حضرت صدیق اکبر ﷺ دغرمې په سخته ګرمۍ کې راووت دجومات طرف ته روان ده حضرت عمر فاروق ﷺ چې دده اواز واورید هغه هم راووت، نو حضرت ابوبکرصدیق ﷺ نه یې پوښتنه وکړه چې ای صدیقه ! ته په دې غرمه کې څه شي را ایستلی یې ؟ حضرت صدیق اکبر ﷺ ورته وایې چې دنس دلوږې درد نه راوتلی یم. چې قراراوګذاره مې نه کیدله، ددې وجې نه راووتم حضرت عمرفاروق ﷺ ورته قسم کوي چې زه هم دلوږې له تکلیف نه راوتلی یم، وږی وم په کورکې مې دخوراک څه نه لرل .
په دې وخت کې حضرت رسول کریم ﷺ راووت چې ګوري دواړه یاران چې دده دزمکې وزیران هم دي دغرمې په سخته ګرمۍ کې ولاړ دي ،نوورته وایې چې یاصدیق اوعمر تاسې په دې وخت کې څه شي را ایستلي یئ؟ هغه دواړه ورته وایې چې یارسول الله ! دلوږې دتکلیف نه راوتلي یو.
حضرت رسول کریم ﷺ ورته قسم کوي چې والله زه هم دهغه تکلیف له وجې نه راوتلی یم دکوم له وجې نه چې تاسو راوتلي یئ.
خوکه دې تللو طاقت مو وي راځئ چې دحضرت ابوایوب انصاري ﷺ کورته لاړشو کیدای شي چې دهغه په کورکې دخوراک څۀ شی ري.
حضرت نبي کریم ﷺ دحضرت ابوبکرصدیق اوحضرت عمرفاروق په شمول دحضرت ابوایوب انصاري کورته ورغلل .

دحضرت ابوایوب انصاري ﷺ داعادت و چې روزانه به یې دحضرت نبي کریم ﷺ له پاره ډوډۍ پاشیدې ساتلې چې حضرت رسول الله ﷺ به دده په کورتیریده نوشیدې به یې ورته راویستلې اوهغه به حضرت رسول کریم ﷺ وچیښلې نوځکه حضرت رسو ل کریم ﷺ دوی ته وویل چې دحضرت ابوایوب انصاري کورته راځې چې ورشو.

خوبه دې ځل باندې حضرت رسول کریم ﷺ په هغه وخت ورتغی چې مخکې به ورته، نوحضرت ابی ایوب انصاري ﷺ په باغ کې ده خپل کار کوي دده ښځه مبارکه ورته راووتله چې ویې لیدل نوورته وایې چې: مرحبا برسول الله ویمن معه ﴾ ښه راغلاست دوې حضرت رسول الله ﷺ اودهغه ملګروته.

حضرت نبي کریم ﷺ ورنه پوښتنه وکړه چې حضرت ابوایوب انصاري چیرې ده ؟ هغه ورته وایې چې باغ ته تللی دستې راځې حضرت ابوایوب انصاري ﷺ دوی ولیدل په منډه له خپل باغ نه راغی اوچې څرنګه را ورسیده دخوشحالي اظهاریې وکړ چې مرحبا ښه راغلاست دې وي رسول الله ﷺ اودهغه ملګروته، نن به په مخ دزمکې ترمانه عزتمند میلمانه دبل چاتوې په نصیب شوې.

بیا ورته وایې چې یارسول الله ﷺ! نن خو دنورو وختو څخه ناوخته شوې ؟ دی ورته وایې چې بلې.

نووایې چې تاسې دلته کینې ابوایوب انصاري په منډه باغ ته ولاړ او دخرمایوه ګیډۍ یې راپرې کړه چې په هغه کې وچې خرما هم وې اوښې پخې خرماهم وې اونیمې پخې خرماهم وې.

رابې ورې اوحضرت رسول الله ﷺ په مخکې یې کیښودې چې تاسې داخورئ ،حضرت رسول الله ﷺ ورته وایې چې ولې دې داسې اونکالې راوشکاوه چې درې سره قسم خرما وې دې پکې ؟ بوخوخرماوې به دې راشکولې وي هغه بس وي.

حضرت ابوایوب انصاري ؓ ورته وایې چې زما زړه داؤ چې رطب هم،تمرهم اوبسروخورئ یعنې نیم پوخته خرما ،پخې خرما اووچې خرماچې کوموته مو زړه کیږي هغه تولې وخورئ،خوله دې سره زه تاسوته یوشی هم حلالوم حضرت رسول الله ﷺ ورته وایې چې ابی ابویه ! پام کوه چې دلوشلوشی حلال نه کړې.

حضرت ابوایوب انصاري ؓ کورته لاړسیرلی یاسیرلی،بناپه اختلاف درواياتو، حلال کړل،خپلې مېرمنې ته یې وویل چې ډوډۍ پخه کړه اونیم پسه دکباب په شکل پوخ کړه اونیم پسه یې د شوروا په شکل پوخ کړه.

کله چې ډوډۍ پخه شوه نوکباب اوشوروا یې راوړه اوحضرت رسول الله ﷺ مخ ته یې کیښودل . حضرت رسول الله ﷺ حضرت ابوایوب انصاري ته وایې چې په ډوډۍ کې لیږغوښه کیږده چې زمالور حضرت فاطمې ته یې وروړم چې هغه هم داډېروخت کېږي چې وږې ده څه یې نه دې خوړلې.

هغه غوښه یې حضرت فاطمې ته ورووړه اودی بیرته راغی اوخپل خوراک یې وکړ.

حضرت ابوبکرصدیق ؓ حضرت عمرفاروق ؓ ته وایې چې په ورځ دقیامت به له مونږ نه ددې نعمت پوښتنه کیږي .

دلورې نه په عذاب ،په داسې تکليفي حالت کې په نس ماره شول ددغه حالت نه بياهم داريږي چې ددغه نعمت به هم له مونږ نه پوښتنه کيږي.

## د حضرت حسن رضی الله عنه او حُسين رضی الله عنه د لوږې واقعه

حضرت رسول الله ﷺ يووخت کې دحضرت فاطمې رضی الله عنها کورته ورغی چې دهغې په کورکې نه حسن رضی الله عنه شته اونه حسين رضی الله عنه شته. حضرت رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې زمازامن چيرته دي؟ حضرت بي بي فاطمه رضی الله عنها ورته وايې چې يارسول الله ﷺ ! دپرون راهيسې زمونږ په کورکې دخوراک شی نشته نوحضرت علي رضی الله عنه چې دکورنه وت وېې ويل چې تابه په عذاب کړي زه به يې بوزم دفلانکي يهودې باغ ته که له هغو خرماونه څه خرما رالويدلې وي دزمکې نه به يې راتولې کړم چې دوی ته يې ورکړم.

حضرت رسول الله ﷺ وربسې ورغی چې حسنين مبارکينو خرماوې خوړلې؟ طبيعت يې جوړده ،کمکي ماشومان دي پوښتنه يې وکړه. دی چې ورغی نودخرمادونې لاندې اوبه ډنډولاړې دي دوی دواړه پکې ساعت تيروي. بيا حضرت رسول الله ﷺ ورته وايې چې ياعلي! دابچيان کمکي دي ګرمي يې په عذابوي درخه چې وختي يې بوزو. هغه ورته وايې يارسول الله ﷺ لږ ودريږه چې بي بي فاطمې ته هم څه خرماوې تولې کړو هغه هم له ډيره وخت نهاره،نو څۀ خرماوې يې تولې کړې بيايې کورته حضرت بي بي فاطمې ته ورورې.

حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي : چې څوورځې په مونږ باندې نهارې تيرې شوې په کورکې دومره څه نه وو يا يې مونږ وخورو اويا يې بچيانوته ورکړو.

يوه ورځ دباندې راووتم چې هلته په لارکې مې يودينار پيداکړ،يوساعت ورته ودريدم چې را وايې خلم اوکه پرې يې ږدم، خواخرمې راواخيست ورغلم له دوکاندارنه مې څه وړه واخيستل کورته مې راوړل حضرت بي بي فاطمې ﷺ ته چې داوړه خوشته کړه. حضرت بي بي فاطمې دډېرې لوږې نه چې دا وړه يې خوشتول ددې دتندې مبارک ويښتان په کاسه کې لړيدل اوبې اوښه وه،داوړو دخوشتولو طاقت يې نه ؤ.

صحابه کرامو ﷺ اوحضرت رسول الله ﷺ داسې زندګې تيره کړې ده چې دنيا به يې ډېره شوه نوژړل به يې.

حضرت علي ﷺ په اخروخت کې په دې ژړل اوخفه ؤ چې يووخت کې په ماداسې لوږې تيرې شوې اونن مې دخپلې دنيا زکات څلويښت زرو درهمو ته رسيږي.

په صحابه کرامو ﷺ باندې داسې تکليفونه راغلې دي چې په کورکې يې په شپه اوورځ شی نه پيدا کيده.

## امهات المؤمنین له حضرت نبي کریمﷺ څخه د نفقې د زیاتوالي غوښتنه کوي

ام المومنین قسم خوري چې په یوه میاشت کې زمونږ په کورکې اور نه دی بل شوی ،داسې وختونه په مونږ تیرشوې دي چې څه غنیمتونه ونیول شول نوټولې بیبیانې مبارکینې له حضرت رسول الله ﷺ نه راتاؤ وې اوورته وایې چې مونږ ته په نفقه کې څه زیادت وکړه.
صحابه کرام ؓ دباندې دحضرت رسول الله ﷺ کورته ناست دي ،حضرت رسول الله ﷺ چاته دکوردننوتلواجازه نکړي چې ورشي حضرت صدیق اکبرؓ راغی هغه ته هم اجازه نشته ،حضرت عمرفاروق راغی هغه ته هم اجازه نشته وروروسته یې بیا دوی دواړوته اجازه وکړه چې ورننوتل ډېر پریشانه ناست ده . حضرت عمرفاروق ؓ ډېرد کشف څښتن ؤ هغه ورته وایې چې یارسول الله ﷺ! زه چې دکوره راوتم زمانه خپلې ښځې مطالبه کوله چې په رزق کې،په نفقه کې ازادي راته وکړه، حضرت رسول الله ﷺ تبسم وکړ ویې ویل چې دادتاسې میندې هم له مانه راتاو دي زمانه نفقه غواړي.
حضرت صدیق اکبرؓ ورجګ شو په خپله لورحضرت عایشه ؓ باندې یې دوهلو اراده وکړه ، حضرت عمرفاروق ؓ ورجګ شو په

خپله لور (حضرت حفصه ﷠) باندې یې دوهلو اراده وکړه ،حضرت رسول الله ﷺ ورته وایې چې نه وهې به یې نه.

که مونږ د طالبې زندګې ته وګورو الحمدلله دومره د ازادې زندګې ده چې په شوا روزکې خوبووخت نه بلکې دواړه وخته لنده ډوډۍ رسیږې اوبیاهم چې مونږ دنعمت شکرانه اداء نکړو، دازمونږ عوام ورونه الحمدلله دومره آباد دي چې په هروخت کې په ډوډۍ ماړه ترکارې هرڅه ورته رسیږې ،نوباید چې ددغه هم سوچ راسره پیداشي چې ددغونعمتونوبیا له مونږ نه پوښتنه کیږي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد و على آله واصحابه اجمعين

الله الله الله

# (۳۵) مجلس

## هغه نعمتونه چې باید قدریې وشي

حضرت نبي کریم ﷺ فرمايي چې پنځه شیان مخکې له پنځوشیانو غنیمت وګڼئ؛

**اول نعمت: عمر دی**

یودهغونه دانسان دعمر(ژوندون) دی یعنې ژوندون مخکې له مرګ نه غنیمت وګڼه، ددامعناده چې سړی پدې یوه شي چې زما دژوندون هرملټ هرسیکنډ ،هر ساعت دومره قیمتي شی ده چې ټوله دنیا چې سړی خرڅه کړي یوساعت اویوملټ ژوندون نه شي اخیستلای ،ددنیا نورنعمتونه اکثره داسې دي چې هغه په روپو اخیستل کیږي،په سفارش پیداکیږي،په زورپیداکیږي ؛خو عمر داسې نعمت ده چې داپه هیڅ بیانه پیداکیږي چې یووار دخداوندمتعال ﷻ دطرف نه هغه کومه نیټه چې دمرګ له پاره مقرر وه هغه راورسیده که ددنیا ترټولونه لوی بادشاه وي ،دلوی قدرت څښتن وي ،لکه په ټوله دنیاباندې څلوروکسانو بادشاهي کړي دوه مسلمانان اودوه کافرانو خودټولې دنیا بادشاه که هم وي چې کله ملک الموت ورته حاضرشوی ده چې ټوله دنیا یې ورکړې وای ؛نوبیابه یې هم یوملټ ژوندون ورنکړ ، دایودومره غټ قیمتي

نعمت ده چې په هيڅ طريقه بيا نه پيداکيږي اوارمان بيا سړی پسې کوي.

## په يو( سبحان الله ) ويلو سره دقبر د پنځوسوو کلونو عبادت ورکوي

يو ولي الله په يوه هديره باندې تريده ديوقبرمتعلق کشف ورته وشو چې په قبرکې سړی ده اودخدای پاک ﷻ په عبادت باندې لګياده،ده تعجبا سبحان الله وويل،هغه دقبرڅښتن پده باندې غږ وکړ چې زما پنځه سوه کاله کيږي چې زه وفات شوی يم اودخداوندمتعال ﷻ په عبادت اودغه زندګي باندې لګيا يم لکن ددغو پنځو سوو کالونو عبادت به ټول زماتاته ورښنم که ته داديو وار سبحان الله چې تاوويله ثواب ماته وبښې ځکه ددنيا شی بی ارزښتنه نه ده، دنيا مزرع داخرت ده، دلته يوه کليمه دسبحان الله ويل قيمت لري دومره غټ چې سبحان الله دزمکې نه تراسمانه پورې، په يوقول باندې نيمه تله دميزان ډکوي.

الحمدلله ټوله تله دميزان ډکوي. داددغه ژوند کليمه ارزښت لري چې سړی مړشو حديث شريف کې راځي : اذامات الانسان انقطع عمله الامن ثلاث ﴾ عمل يې قطعه کيږي پنځه سوه کاله يې په قبر کې دخدای پاک ﷻ په عبادت تيرکړي هغه ورته بنبي خوچې دايوسبحان الله ته ماته راکړي. ګورئ دابيا نه پيداکيږي.

**دوهم نعمت فراغت دی:**

دوهم نعمت فراغت دی ،داچې سړی په مصیبتوکې نه وي واقع ،سړی پدې شیانو کې نوې واقع ،دخدای پاک ﷻ عبادت اوبندګي ته خلاص وي دغه ترټولونه غټ نعمت دی ،هغه خلکوته چې دغه نعمت معلوم ؤ نوهغو به خداوندمتعال ﷻ ته دفراغت سوالونه کول اودغه فراغت چې قیمت ورته معلوم ؤ چې دغه یې نه ضائع کاوه خدای پاک ﷻ له دوی سره څه معامله کوله زه یودوه واقعې دلته بیانوم:

## دحضرت بي بي رابعه یوه زړه دردوونکې واقعه

حضرت بي بي رابعه دحضرت رسول کریم ﷺ په امت کې یوه نیکه ښځه تیره شوې ده خوداحضرت بي بي رابعه په یوداسې مسکین کورکې پیداشوې ده چې په کومه شپه چې داپیداشوه په هغه شپه دچراغ تیل نه ؤ ،په کورکې دومره غوړ نه ؤ چې ددغې جنکې نويې پرې غوړکړای وای. په هغه کورکې دومره جامه نه وه چې دايې پکې تاوکړې وای ،ددې قبله ګاه صاحب داسې دخدای پاک ﷻ دوست ؤ چې دخداوندمتعال ﷻ سره یې داوعده کړې وه چې زه به یې دتاله دربارنه دبل چانه غوښتنه ونه کړم.
دبي بي رابعې مور مبارکه ورته وایې چې دهمسایه کورته ورشه که لږ تیل اوڅۀ غوړ درکړي داجنکۍ وربانډې غوړه کړم اوڅۀ رڼایي وربانډې جوړه کړم ،هغه ولاړ دهغه بل کور په دروازه یې صرف لاس کینښود بیرته راغی چې هغه کور والا دروازه نه خلاصوي ویده دي،

شپې حضرت رسول الله ﷺ په خوب کې ورته وایې دوخت امیر، ورته ښي چې ورشه هغه ته ووایې اوزماسلام ورباندې ووایه اوداښیانه چې هره دجمعې شپې به تاپه ماڅلورسوه وارې درود ویله اوپه تیره جمعه کې درنه پاته شوی ده نودهغه په جبیره کې دغه انسان ته څلور سوه درهمه ورکړه ؛نودحضرت رابعې پلار دې بادشاه ته ورغی نوهلته یې په یو کاغذباندې درخواست ولیکه چې حضرت رسول الله ﷺ تاته یوپیغام راکړی (نوهغه دوخت امیران مخکې دهرصالح خلک و) نوویې ویل چې دابې آدبي ده چې دی دننه راځي ځکه چې دحضرت پیغمبر علیه السلام پیغام یې راوړی نوزه دباندې ورځم نودی دباندې ورته راووت بیا دی چې داحال ورته وایې نوهغه دشکراني له پاره چې داخو مې درود قبول ده چې رسول الله ﷺ ته مې دردود رسیږي نوده ته هم روپۍ ورکوي اونورخیراتونه هم کوي قصه لنډوم اخردرابعې پلار وفات شو دوی څلور خوندې ورنه پاتې شوې اوپه دې کال باندې قحط سالي هم راغله.

بلې خواته ددوی وررور هم نه و ؛نوتربورو داجنګې په خپل منځ کې تقسیم کړې اوبیا بي بي رابعه اصیله مسلمانه جنګۍ وه دمسلمان لور وه دې ظالمانو تربورو دمنځې په نام خرڅه کړه چې دازما منځه ده.

حضرت بي بي رابعه په هغه کورکې دخپل مالک په خدمت کې لګیاوه اوهلته یې دزړه تعلق دزړه عشق اومحبت دالله تعالی ﷻ په عبادت کې ده خوعبادت ته نه خلاصیږي.

يوه ورځ يې دباندې په څه شي پسې وليږله هلته په مخه يوځوان ورغی، نودې ته خوځان معلوم ؤ چې حوره يم نومنده يې کړې ديوديوال نه يې خان پناکاوه چې دا نامحرم سره مخامخ نه شي؛نودقدرت کارونه وددېوال خواته لوی زور خندق وهغه ته وررولويدله اولاس مبارک يې مات شو اوبيا خدای پاک ته په سجده پريوته چې ای خدايه!

يتيمه شوم. دمنيځې په نامه خرڅه شوم .روغه وم اوس مې لاس مات شو اودپوښتنې ځوک نلرم؛ددې ټولو هيڅ پروا نه کوم خوکه زه په دې پوه وای چې ته له مانه راضي يې اوکنه؟

نوغيبي غږ پرې وشو چې ای بي بي رابعې!

ته مه خفه کيږه تاته به په قيامت کې زه داسې مقام درکړم چې غټ غټ خلک به دهغه غبطه اوتمناکوي.

له عبادت سره يې دومره مينه وه چې کله به ددې مالک ويده شونودا به عبادت ته جګه شوه ځکه دورځې يې دخپل مالک خدمت کاوه فراغت نه و ورسره.يوه شپه له شپوته راجګه شوه لمونځ يې کاوه په سجده پرته ده دعاکوي اوپه دعاکې څه کلمات په زوره ورنه وويل شول ددې مالک راويښ شو چې داداکلمې وايې : ای رب تعالی ته خوزما په زړه باندې خبر يې؛ چې زما دزړه ټوله مينه دتاپه عبادت کې ده زما دسترګوسړوالی ټول دتاپه بندګي کې ده ؛خوځنه وکړم چې دبنده بنده دې کړې يم،وخت نه لرم چې دهرناوخته رافارغه شم اوپه شپه کې ناوخته تاته په عبادت دريږم.

رب تعالی! ته زمادا نيم ګړی عبادت په خپل دربارکې قبول کړې

ددې مالک چې راوېښ شو ګورې چې په کوټه کې رڼاده چې داسمان لطرف نه پدې باندې انوار راورېږي، هغه ته یې چې قیمت معلوم شو چې داخومره قیمتي جنکۍ ده؟ نوورته وایې چې کاشکې! زه دې غلام وای.

سهار یې دا آزاده کړه چې زما نه آزاده یې خوښه دې چې له ماسره اوسېږې اوکه نه دخپل ځان خپله بندوبست کوي اوخپل عبادت ته خلاصه یې. نودې یوه ګوډخه جوړه کړه په هغه کې به یې دالله تعالی ﷻ عبادت کاوه.

یوه وخت دا دحج په سفر روانه شوه هغه خر چې داوریاندې سپره ده په نیمه لار کې وفات شو، دقافلې ملګر ورته وایې چې زمونږ سره بوځای لاړه شه.

داورته وایې چې نه!

کله چې دوی ورنه روان شول په بیابان کې په یوګوښې ځای کې پاته شوه؛نورب تعالی ته دومره بیا محبوبه وه وایې چې ای رب تعالی! دوست له دوست سره داسې کوي چې دخپل کور دملاقات نه دې محرومه کړم. په چولې بیابان کې پاته شوم. دحیواناتو،حشراتو مخه نه وینم ؛نویه هغه ساعت باندې خدای پاک ﷻ هغه خر ورته را ژوندی کړ.

کله چې کعبې مبارکې ته ورسیده حضرت ابراهیم ابن ادهم رحمه لله هم حج ته تللی و، هغه چې ګورې دکعبې خپل حقیقت په خپل ځای نشته.نوحیران شو چې دکعبې حقیقت چیرې تللی.

هاتفي غږ وړباندې وشو چې دبي بي رابعې زيارت ته ورغلې ده،
هغه په خداى دومره ګرانه ده چې کعبه يې استقبال ته ورغلې ده.
هغه داچې يوکال ابراهم بن ادهم رحمه الله تعالى له يوې خواحج ته
روان وو اوپه څوارلس کاله کې ورسيده، څکه چې قدم په قدم يې
نفلونه کول اوبي بي رابعه له بلې خوا حج ته روانه و اوپه کم وخت
کې چې ابراهيم بن ادهم رحمه الله کعبې مبارکې ته ورسيده ګوري
چې دکعبې مبارکې حقيقت په خپل ځاى نشته ، حيران شو چې
ددې حقيقت چيرته دى؟ الهام ورته وشو چې دکعبې حقيقت دبي
بي رابعې استقبال ته تللى دى ،کله چې بي بي رابعه رحمة الله
عليها را ورسيده حضرت ابراهيم بن ادهم ورته وويل چې دادې څه
شروع کړي دي چې کعبه مبارکه ستا استقبال ته درغلې ده؟ دې
مبارکې ورته وويل چې تا څه رياکاري شروع کړي ده چې په هرګام
باندې دوه رکعته نفل کوې؟ اوټول عالم دې په ځان خبرکړى . اوبيا
يې ورته وويل چې : آن چه تو درنماز يافتي من درنياز يافتم .

## د حضرت عبدالله بن مبارک د غلام عجيبه واقعه

حضرت عبدالله ابن مبارک ﷺ چې يو مشهوراوبهترين عالم ده
اوامام بخاري رحمه الله په شلواحاديثوکې استاد دى اوصاحب دمذهب
دى ،دده يوغلام ؤ په هغه غلام باندې يې په ورځ کې يودينار
مقررکړى و چې يودينار يه په ورځ کې ماته راکوې نوريه خپل کار
کوي.

نوده به شپه اوورځ دخدای تعالی ﷻ عبادت کاوه ،حضرت عبدالله ابن مبارک ته چاشکایت وکړ چې دتاغلام خوله مړو نه کفنونه غلاصوي هغه خرڅوي اوتاته يې راوړي.

حضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله ډيرزيات خفه شوچې بودينارمې ورباندې اينبی اوهغه هم ماته په حرامه راوړي.

حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله خان په ويدو واچاوه اوغلام له کوره ووت،دی هم له شا نه غلی ورپسې جګ شو، غلام لاړ هديرې ته،په هديره کې يې يوقبر لوڅ کړ اوقبرته ورکوز شو ترډېره ورک شونودی دمعلومات له پاره ورغی چې ولې دومره وځنډې ده،چې ګورې په تبرکې يې دلمانځه ځای جوړکړی هلته په لمانځه لګياده ځکه دورځې فراغت نه ؤ دبل په خدمت کې لګيا ؤ ترسهار يې شپه په عبادت تيره کړه ،سهارچې سپيدې وچاودې نوبيرته را روان شو،حضرت عبدالله ابن مبارک مخکې دی اودی ورپسې دی.

جومات ته راغی هغه له شانه پسې راغی کله يې چې لمونځ وکړ دلمانځه نه وروسته حضرت عبدالله ابن مبارک يې څنګ ته ناست ده،داغلام دعاکوي چې:

ای خداوندمتعاله ! ای مالکه ! ورځ راغله له مانه مالک مجازي روپۍ غواړي اوزه دتادعبادت نه يوسيکنډ نيم فارغ.

ای رب تعالی ! ته يې دخپلو خزانو څخه راکړې.

حضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله ګوري چې داسمان له طرف نه دينار دده په لمن کې ولويده. چې داحال يې وليد حضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله غيرور کړه چې کاشکې ! زه دې غلام وای ته مې مولا

وای ؟. چې رب تعالی ﷻ ته دومره ګران یې چې داسمانه په تاباندې دینارونه را اوروي.

غلام پوه شو چې حال مې افشا شو دعا کوي:

ای رب تعالی! هغه زما اوتا دزړه مېنه چې وه،هغه محبت اواخلاص چې ځهغه تراوسه پورې پټ ؤ اوس هغه ښکاره شو.

رب تعالی! نورپه دنیاکې ژوندون نه غواړم. دده په غیږکې یې ساه وخته.

بیا چې ده په هغه قبرکې لمونځ ورباندې کاوه په هغه خیره جامه کې په هغه ټاټ کې په هغه خپل قبر کې یې خښ کړ.

دشپې حضرت نبي کریم ﷺ اوحضرت ابراهیم ﷺ دواړه حضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله په خوب وېني چې په بُراق باندې سپاره راغلل اوحضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله ته خوشکې کوي چې ددنیاخلک چې مړه شي نونوې جامې خلک ورته کوي نوی کفنونه ورته کوي اوتا دالله تعالی اوزما دوست په خیره جامه په ټاټ کې خښ کړ!.

داوخت چې مونږ دلته ناست اودفراغت زندګي ده خپل ذکرته خلاص یو زمونږ اوتاسې ملګري ژوندي، زمونږ استاذان ،شناخته نن په داسې ځایونوکې دي چې هغوی په میاشتومیاشتوکې قران نشي وراخیستی ،هغه یوساعت دخدای پاک ﷻ ذکرته نه خلاصیږي .داقیمتي وخت که یو ملت مونږ ضائع کوو یقیني ددغه به رانه پوښتنه کیږي چې وجود ،ژوندون ؤ، ځواني وه فراغت ؤ، صحت ؤ اوغنا هرڅهٔ ؤ.

اصل مسلمان هغه ده چې دمسلمان په غم غمجن شي، په مسلمان باندې وخوربږي ، نن که مونږ دلته په خوشحالي باندې ناست یو الحمدلله دخدای پاک ﷻ په عبادت خوشحاله یوخوپه هغو ورونویاید خفه شو چې هغه دخدای پاک ﷻ عبادت ته ندې خلاص، جرم یې فقط دین دی، بل هیڅ ندی نووخت باید سړی ضائع نه کړي، خپل عمرباید سړی ضائع نکړي ،یوسیکنډ اووخت باید سړی ضائع نکړي، بیا به وروسته مونږ ارمان کوو چې کاشکې په هغه وخت کې مونږ لږ کوشش کړی وای؟

کاش ! زمونږ هغه مشائخ چې ژوندي ؤ مونږ ددوی په ژوندکې ،نه ددوی خدمت وکړ،نه مویه ختموکې ډېرشرکتونه کول، نن هغه په لاس نه راځي آرمان وریسې کوو، خدای نخواسته بیا به داسې وخت راغلی وي چې داسې مدرسه به نه شو پیداکولی، داسې یوددین مجمع به نشو پیداکولی یواستاذاویوشیخ به نه شو پیداکولی چې دهغه سره په عبادت، ریاضتونواوذکرکې شرکت وکړو.

دا الحمد لله ډېر دفرصت اوفراغت زندګي ده اوهغه ورونه چې فراغت نلري دکفار په بندي خانوکې بندیان دي ،مونږ اوتاسې ته یې سترګې دي ،محتاج دي چې دعاوي به راته وکړي . همدارنګه مړي دژوندو دعاته دومره محتاج دي لکه ژوندي سړي چې په سخته ګرمي کې یخو اوبوته محتاج وي.

هغه مړي په موږحقونه لري، دمونږ مشائخ دي ،زمونږاستاذان دي، زمونږ خپلوان دي هغه چې وفات شوي دي مونږ ته یې سترګې دي هغه ټول باید په دعاکې یادکړو.

جناب انوارالمشائخ مرحوم خلیفه صاحب قدس الله سره چې په کومه ورځ باندې وفات ؤ په اینده کال کې چې هغه شپه راغله روژه وه دخپل کور والو یې په هغه شپه څۀ ختم اوخیرات نوو کړی چې خوروژه ده،خودزرمت خلیفه صاحب مولوي دین محمد اخندزاده قدس الله سره ویل چې مونږ په کورکې صدقه پسې کړې وه دشپې څوک خوب ویني چې خلیفه صاحب مبارک وایې چه په ماپسې خوچا څه خیرات ونکړوایې چې مونږ ورته وویل چې موږ خوخیرات کړی ؤ ده وویل چې نه دهرمړي خپل نغري ته سترګي وي ،هغه خپلو شاګردانواومریدانوته یې سترګي وي هغه خپلو خپلوانو ته یې سترګي وي.

نوبایدچې هروخت سړی خپل خپلوان اواستادان له خیراوخیرات څخه هیرنه کړي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین

وصلی الله تعالی عل خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا

محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

# (۳٦) مجلس

## داسلام دین دمسلمانوله پاره دراحت ذریعه ده

داسلام دین دادمسلمانانو له پاره ددنیااواخرت دراحت ،سکون داطمنان ، دخوشحالي اوکامیابي ذریعه ده .

دتاریخ ته چې نظروکړو هغه چاچې ددین خوندلیدلی،خوندیې څکلی بیا ددنیا دهرقسم له نعمتونوڅخه بیزاره شوي دي.

## دحضرت ابراهیم بن ادهم دولایت سبب اوله خدای پاک ﷻ سره دده مینه

حضرت ابراهیم ابن ادهم قدس الله سره دخپل وخت دخراسان دبلخ بادشاه ؤ لکن ډېر عابداومتدین سړی ؤ.

یوه ورځ دشپې په کټ پروت دی دخدای پاک ﷻ په ذکرباندې لګیا ده ،دبام په سرباندې یې ډربې واوریده ؛نوغږیې وکړ چې څوک دي؟ له هغه طرف نه آواز ورته وشو چې زه یم اوښ مې ورک دی هغه ګورم. نوده ورته وویل چې اوښ دبام په سرڅه شی کوي داخوډېرنادره ده؟

هغه ورته وویل چې دادومره نادره نه ده چې اوښ دبام سرته وخیژي خودابیا ډېره نادره ده چې ته دې دبادشاهي په تخت ناست

يي او دخداى ﷻ رضا دې غواړي. دده سره څه دخداى پاک ﷻ ویره
پیداه شوه.
بله ورځ ده دبادشاه حُرم سراى ته دپیره داراتو له اجازې پرته ګوري
چې سړي دروازه خلاصه کړه ورته راننوت.
دې ورته وایې چې څرنګه راغلي ؟ اوچارا پرېښودي؟
هغه ورته وایې چې دا خویوه لاره ده پدغه لارباندې تیرېږم.
دې ورته وایې چې لارځنګه ده داخوزماکور ده ،حرم سراى ده؟
هغه ورته وایې چې دتانه مخکې دچاؤ ؟
دې ورته وایې دفلانکي.
څۀ شو؟
مړشو.
له هغه مخکې دچاه ؤ؟
دفلانکي.
څه شو ؟
مړشو.
نوچې یوځي بل راځي ،هغه بادشاهان لاړل په دغه ځاى باندې
تیرشول ته پدغه ځاى باندې راغلي نودایوه لارنه ده ؛نوځۀ شی
دي، زه په دغه لارباندې تیرېږم.
خودادده له پاره الهامات ؤ یوڅوک ورته مقررؤ چې ده ته یې تنبیه
ورکوله ،نوده له ځان سره فیصله وکړه چې دبادشاهي دژوندون
څخه تیرېم چې داسې یوځاى پیداکړم چې دخداى پاک ﷻ په
عبادت باندې مشغول یم ،دواجب تعالى سره مې تعلق جوړشي

خپل وطن اوبادشاهي يې پرېښوده ،خپل کمکی زوی يې په ځانګوکې پرېښوده اودکعبې شريفې په طرف روان شو دحضرت سيدنا امام صاحب رحمة الله عليه شاګردشو .
کتابونه ليکي چې ده ته به امام صاحب ويل چې سيدنا ابراهيم يعني ابراهيم زمونږ سردار ده .
داحضرت ابراهيم ابن ادهم دپروخت تيرشو چې دوطن نه ورک شو،يووخت کې دده کمکی زوی لوی شو مورته وايې چې زما پلارچيره ده ؟ څۀ شومړده،چيره يې قبر ده په کوم طرف باندې تللی .
هغه ورته په ژړا شوه چې پلار دې بادشاه دوخت ؤ خوتخت هرڅه يې پرېښودل،دومره خبره يم چې خلک وايې چې په کعبه مبارکه کې دملنګي ژوندکوي هلته ملنګ ده.
نودحج له پاره دده زوی اعلان وکړ چې څوک حج ته ځي دسفر خرڅه يې زه پرې کوم دېرخلک ورسره تيارشول هلته هغې موقع دحج ته چې ورسيدل په کوم ځای کې چې دوی واړول نوزوی يې مکې معظمې ته ورغی دکعبې مبارکې د مجاورانو نه پوښتنه کوي چې ابراهيم ابن ادهم تاسې پيژنئ ؟ هغوی ورته وايې چې بلې . چيرې ده؟ هغوی ورته وايې چې ددغه غره طرف ته تللی ده لرګي راوړي اوروزانه په شاباندې يوبار لرګي راوړي اوهغه خرڅوي ،څه روپۍ په ځان خوري څه روپۍ په مريدانواوشاګردانو اوملنګانوباندې خوري.

نو کوري چې يو ضعيفه سړی را روان ته ورووت زوی يې چې مخې ده . ده هم وپيژانده چې داهغه ده دی دل‌گیر پيتی يې راخيستی ځکه هغه سړي دغه علامې ورته ښودلې وې، نودخان سره په ژړا شو چې وطن بادشاهي هرڅه پاتې دلته داسې په ملنګي کې ژوندتيروي لږ‌كي په شاباندې راوړي او هغه بيا خرڅوي او په هغوی باندې ژوند کوي.

خوځان يې ورباندې ونه پيژانده .

بل وخت کې ابراهيم ابن ادهم رحمة الله عليه دحج په وخت کې خپل مريدانو او شاګردانو ته توصيه کوي چې ګورئ حج ته ښځې او هلكان راځي تاسې به دنظر ډېر خيال کوي چې په حرم دخدای کې مو په غلطه نظر ونه لګيږي .

دحج مراسم شروع شول دطواف حالت ده حضرت ابراهيم ابن ادهم رحمة الله عليه ته داخپل زوی په مخه ورغی او ډېرپه ځيرځيرې ورته وکاته،هغه هم ورته وکتل.

کله چې دحج مراسم خلاص شول او بيرته راغلل يو شاګرد ورته وايې چې تاخومونږ ته ويل چې دحج په دروان کې به دخپلو نظرونو ډېره ساتنه کوئ او ته ماوليدلې چې يو هلک ته تاډېر په ځيرځير وکتل .

ده ورته وويل چې ته ربنتيا وايې زه ګومان کوم چې سږ كال هغه زماکمکی زوی چې ما په زانګوکې پرې ايښی و ، هم حج ته راغلی هغه ته ماپه ځيرځير وکتل .

دادده شاګرد ولاړ دخراسان دحاجیانو پوښتنه یې وکړه هغه یې پیداکړل اوهغه ده چې ورته په ځیرځیرکتلې وهغه یې هم پیداکړاوموربې ورسره وه ؛نوورته وایې چې دتاپلار څوک دی؟
دی ورته وایې چې ابراهیم ابن ادهم ده.
هغه ورته وایې چې هغه چېرې ده؟
زوی یې ورته وایې چې له وطن څخه ډېرکالونه کېږي چې راغلی ده خویوه ورځ مېخکې مې ولیده چې دلرګیوپیټی یې په شاه اوپرون دحج په وخت کې مې بیا دطواف په حالت کې ولیده چې دی په طواف کې لګیا ؤ.
دغه دده شاګرد ورته وایې چې نوتاولې خپل ځان نه ورپیژانده؟
دی ورته وایې چې ددې له پاره مې ځان نه ورپیژانده چې دی زمونږنه راتښتیدلی ده اهل اواعیال یې دخدای پاک ﷻ په عشق کې پرېښې نوزه په دې پوهیدم چې که زه ځان وروپیژنم دلته به زمونږ نه بیا ځان پټ کړي.
داشاګرد یې جګ شو ورته ویې ویل چې که تاسې هغه ووینئ نوهغه پیژنئ؟
دوی ورته وایې بلې هو!
نودادده بي بي اوزوی دواړه یې را روان کړل کله چې په حضرت ابراهیم ابن ادهم رحمة الله علیه باندې دخپلې بي بي سترګې ولګیدلې نوچېغې یې کړي چې داحضرت ابراهیم ابن ادهم رحمة الله علیه دی.
حضرت ابراهیم ته یې زوی ورغی غیږېې ورکړه سترې مشې کوي په سترې مشې کې اول پوښتنه داورنه کوي چې په کوم دین یې؟

مسلمان یم.
زوی یې ورته وایې چې الحمدلله.
حضرت ابراهیم رحمة الله علیه وایې چې قران کریم دې ویلې؟
حضرت ابراهیم رحمة الله علیه بیا ورته وایې چې الحمدلله.
زوی یې وایې هو! دی بیا ورته وایې چې الحمدلله.
حضرت ابراهیم رحمة الله علیه بیا ورته وایې چې علم دې کړئ؟
زوی یې وایې چې بلې دفقې په احکاموکې لګیایم.
حضرت ابراهیم رحمة الله علیه بیا ورته وایې چې الحمدلله.

له دینه پس ابراهیم ابن ادهم رحمة الله علیه دستې جګ شو له دې ځای نه روانیږي زوی یې پښوته غیږورکړه، ښځه یې په کالیو پورې ونیښته چې دوطن نه داشل کاله کیږي چې راغلی یې نن مودلته پیداکړي اوته اوس بیا له دغه ځایه روانیږي چیرته ځې؟

حضرت ابراهیم رحمة الله علیه ځان خلاصوي اوزوی یې غیږورکړي اخیر دزوګلوي شفقت راغی ،نوهاتفي غږیږې وشو چې زما ددوستي دعوه لري اوبیا دخپل زوی په عشق کې لګیاشوې.

نوحضرت ابراهیم رحمة الله علیه داسمان لورې ته سترګې پورته کړي اودا الفاظ یې وویل چې :( اللهم اغثني) خدایه پاکه !ته زما معاونت وکړې.

دزوی مبارک روح یې دده په غیږ کې قبض شوه.
چاپوښتنه ورنه وکړه چې داولې ؟

ده ورته وویل چې ځکه چې د رب تعالی ﷻ له طرفه په ماآواز وشو چې په دوستي کې فرق راغی دخپل زوی سره دې تعلق پیداشو نوماخدای پاک ﷻ ته وویل چې ای رب تعالی ! ته مې نصرت

ذکري چې یامامړکړي چې په هغه عشق کې مې تغیر رانشي اویامې زوی مړکې چې دهغه په محبت کې زه ګرفتارنشم.

## حضرت ابراهیم بن ادهم په ظاهري تکلیف معنوي خوند اخلي

دا ابراهیم ابن ادهم رحمة الله علیه دخپل ژوندحالات ذکرکوي اووایې چې په خپل ټول ژوندکې په درېوځایونوکې په ماباندې ډېره خوشحالي راغلي خوپه دې ټولوکې په درېوځایونوکې په ماډېره زیاته خوشحالي راغلي:

**اول**: په هغه وخت کې چې زه سخت مریض وم اوپه یوځای کې یوجمات ته دمسافرپه شکل ورغلم هلته چې خلک له جومات نه ووتل زه په جومات کې پریوتم ؛نودجومات خادم ماته وویل چې ووزه زه جومات بندوم ،خوزما په وس کې دومره نه و چې له خپل ځایه جګ شوی وای اخر دغه خادم زه دپښونه ونیولم کشکولم یې له جومات نه بې دباندې ویستم،دبرنډې په زینوکې چې دیوې زینې څخه بلې زینې ته چې زماسرلګیده ؛نوپه دغه وخت کې چې دخدای پاک ﷻ مشاهده اوانوارات ماته پیداشول دومره خوند په ټول ژوندکې ماته بل هیڅ وخت کې نه ده پیداشوی.

**دوهم**: یووخت کې داسې دخیرو په حالت کې وم چې مابه په سرلاس کش کړنودهرویښته سره مې سپګې نیښتې وې ،نوپه دې وخت کې چې دخدای پاک ﷻ طرف نه کوم رحمتونه په ماباندې نازلیدل ماداخوندپه بل وخت کې نه دی لیدلی.

**دریم** : یو وخت کې په کشتۍ کې سپور وم دملنګ په شکل کې ببر لباس یوځوان په کشتۍ کې ټوکې کوي اوبیا ماتیل وهي اوپه ماباندې پسخندوهي اخرچګ شو زما په سریې بولې شروع کړې چې ځرنګه بولې (تش جواب چاې) شروع شوې نوحجاب پورته شو زما اوخداې پاک ﷻ په مابین کې مشاهده اودیدارراغی داخوند چې ماته په دې وخت کې پیداشو په بل وخت کې په ټول ژوند کې نه و پیداشوی .

دبادشاهي ژوند نه ښیي چې ماته دخوندژوندؤ ، ددبدبې ژوند نه ښیي چې ماته دخوندژوندؤ .

که سړی دغه مجلس ته وګوري داچې یوچاته دومره عشق پیداکیږي [ په دغه مجلس کې یو طالب دومره جذب شو چې د جومات چت ته تقریباً ورسېده اوپوزه یې وینې شوه ] چې دخداې دنامه په برکت هغه په زمکه لګیږي اووینې یې دبدن نه بهیږي اوده ته په دې کې خوندپیداکیږي داعشق ددین ده ، داددین خوند ده داسې خوندپه هیڅ شي کې نشته چې سړی دې له دېرخونده خپل ځان وینې کړي ، خپله پوزه دې ماته کړي ، لاس دې مات کړي اودی دې په دغه خوندکې غرق وي . مخکې مادرته وویل چې دادفراغت زندګې ده چې خداې پاک ﷻ مونږ ته رانصیب کړې ده قسم بالله چې زه قسم درته کوم چې کله داخبره شروع شي چې مهاجرین ددغه ځایه (میرانشاه) نه بارکیږي ، ددغه (میرانشاه) وطن نه شړل کیږي ماته بل هیڅ غم اودرد نه محسوسیږي بې له دېنه چې دغه زمونږ مجمع دعلم ، دامجمع

دذکر ،داددين عشق ،دغه محبت به زمونږ له لاس نه ووزي
خوزمونږ درزق زموارالله تعالی ﷻ ده هم دا اوس قاري صاحب
وويل چې احمدضياء خليفه صاحب دغزني نه تليفون کړی ويلې
يې دي چې پدغه مجمع کې ماته دعاوغواړئ. زمونږ مشائخ کرام
،زمونږ استاذه کرام دداسې مجمع په آرمان دي چې کله به داسې
وخت پيداکيږي چې مونږ اوخپل مريدان سره يوځای شو اوپه ګډه
دخداوندمتعال ﷻ ذکرکوو ،ددغه خوبايدانسان قدروپيژني
اودادعا کوو چې خدايه پاکه ! ددې وخت په آرمان مومه کړي.

**وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمين**

**وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا ومولانا**

**محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين**

  



# (۳۷) مجلس

## توبه، ژړا او له خدای پاک ﷻ نه ډار او وېره

په قرانکریم او احادیثو کې د قیامت د حالاتونه په بیانولو کې حکمت داده چې د خلکو سره څۀ ډار او وېره پیداشي او خلک له ګناهونو څخه خدای پاک ﷻ ته توبه ګار شي او داخرت له پاره څۀ نیکه ذخیره پیدا کړي.

نو ددې متعلق چې سړی انسان دی په انساني صفاتو د بشریت په صفاتو باندې کمزوری ده کله دانسان نه ګناه کیږي او دهغې ګناه په سبب سړی اهل داورګرځي ددغه نه بیرته دخلاصون لار څه شی ده؟

نو ددې له پاره لنډه لاره هغه داده چې سړی په خپل کړو بدو اعمالو پیبنیمانه شي په اخلاص توبه ګار شي، خدای پاک ﷻ ته پیښیماني اظهار کړي او داینده له پاره ټینګ قصد ددې وکړي چې ای خدایه ! زه به دا ګناه بیا نکړم نو که ددغه انسان نه دده دبشریت په تقاضا څه ګناه شوې وي خدای پاک ﷻ یې دتوبې په برکت بیرته ورته معاف کوي.

خو واقعات راځي چې دخدای پاکﷻ له دار نه اول ځان منعه کړي یا ګناه شوې بیرته توبه په اخلاص وکاږي سړی داخرت له عذابونو څخه خلاصیږي:

## د الله پاکﷻ له ویرې توبه ایستل

د یوې ښځې سره دیوسړي تعلق پیداشو ،دزړه محبت ؤ خودا موقع نه ورته پیدا کیدله چې ددغې ښځې سره خپله بدعملي وکړي، خپل مقصود ورنه پوره کړي، یووخت په یوه قافله کې روان ؤ دا ښځه هم په دغه سفر ورسره روانه ده یوځای کې دقافلې خلکو واړول ،شپه شوه دارام له پاره کله چې خلک په قرارشول نودغه سړی دغې ښځې ته ځان ورنږدې کړ اراده یې دبدعملي وکړه،دې ښځې ورته وویل چې لږ وګرځه چې دقافلې خلک خوبه ویښ نه وي؟ دده زړه خوشحاله شو چې غالبا زماحکم مني ،نوجګ شو په قافله راتاؤ شو نوښځې ته یې وویل چې هیڅوک هم ویښ نشته ټول ویده دي.

دا ښځه ورته وایې چې الله تعالی ویده ده که ویښ ده؟ دې سړي چورت وواهه نوویې ویل چې الله تعالی خو نه ویده ده اونه ویده کیږي :﴿ لَا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلَا نَوْمٌ ﴾ په هغه خوب نه راځي اونه مقدمات دخوب ( پریښاني) پرې راځي . نوداښځې ورته وویل چې مونږ دخلکو نه پټیږو بدعملي کوو دخلکو نه ډاریږو؛نوولې دهغه ذات څخه نه ډاریږو چې هغه همیش ژوندی ده ،هغه همیش بیدار ده

،هغه هميش مونږويني ،هغه په مونږ هررنګ قدرت لري ،عذاب په هم راکوي،راحت هرڅۀ دهغه له طرف نه دي.
نوددې سړي زړه ته هم څه خوف اووېره ولويده دالله تعالی ﷻ له ډار نه يې دابدعملي پرېښوده.
کله چې دی مړشوچا په خوب وليده چې خداوندمتعال ﷻ څۀ معامله درسره وکړه ؟ دی ورته وايې ماته خداوندمتعال ﷻ مغفرت وکړ ددې وجې نه چې دهغې ښځې په خبره زماسره دخدای پاک ﷻ ډارپيداشو دهغې ګناه نه مې رجوع وکړه ،هغه ګناه مې ونه کړه، دخدای پاک ﷻ له ډارنه مې پرېښوده نوخدای پاک ﷻ زه په دغه باندې وبښلم.

## يوسخي ته له مسکينا نوسره په کومک باندې مخکې ټول ګناهونه معاف شول

روايت کې راځې چې په بنواسرائلو کې يونيک سړی ډېر غريب ؤ،عيال يې خوورځې نهارې تېرکړې وي ، ده خپلې ښځې ته وويل چې ته لاړه شه دچاله کورنه دې که څۀ شی راوړل .
دابنځه ديوتجارکورته ورغله اوورته ويې ويل چې عيال مې له خوورځو راپه دې خوا څه نه دې خوړلي که څۀ کومک راسره وکړي؟ .
هغه تجارورته وويل چې له ماسره بدعملي کوي بيا به څه درکړم کنه ،نه يې درکوم.

دانبخه بیرته را روانه شوه چې دخدای پاک نه زه ډاریږم څرنګه زه بدعملي وکړم ،کله چې کورته راغله بچیان یې ورته په انتظار دي چې موریه اوس څه را وړي ،هغه موریې چې ولیده چې خالي لاس ده اوهیڅ شی ورسره نه شته نوبچیانو یې بیایه ژړا اوپه چیغو شروع وکړه .ای موري ! مونږ خوداڅوشپې کیږي چې څه نه دې خوړلي ،مړه شولو.

دې ښځې چې دخپل اولاد حالت ولیدل دمور په خپل اولاد شفقت زیات وي نوښځه بیرته هغه تجارته ورغله چې بیا یې ورته وویل چې هلکان مې سخت ژاړي که څه کومک وکړي؟ هغه ورته وویل چې زماخبره ومني اوکه نه ؟ دې ورته وویل : هو! چې کله داسړي اراده دبدعملي وکړه ددغې ښځې صورت په ریږدیدلوشو . کتاب لیکي چې نږدې ؤ چې بندونه یې سره جداشي دومره په ریږدیدلو شوه ،سړي ورته وویل چې ولې ؟ څه پیښه ده ؟ چې دومره ریږدي ښځې ورته وویل چې په ټول ژوندمې ګناه نه وه کړي اودرب تعالی نه ډاریږم اونن څرنګه درب تعالی په حضورکې ،چې هغه راته ګوري اوزه په بدعملي لګیا شم.

ددې خبرې له اوریدلو سره ددغه سړي زړه ته ډارپیداشونوویې ویل چې ته دخدای پاک ﷻ نه دومره ډاریږې حال داده چې په ټول ژوند دې بله ګناه نه ده کړي ؛نوزه خوډېر لوی ګنهکاریم نوزه به څرنګه نه ډاریږم. نوتوبه یې ویسته اوددې سره یې دخپل وس مطابق کومک وکړ.

حضرت موسی ته خدای پاک ﷻ وحې وکړه چې ورشه ! فلانکي دفلانکي زوی ته ووایه چې مامخکې تول ګناهونه تاته ددغې یوې توبې په سبب دربښلي.

حضرت ابراهیم بن ادهم رحمه الله په کعبه مبارکې باندې طواف کوي دطواف په حالت کې دادعا کوي چې ای رب تعالی ! زما عصمت نصیب کړي، دامعنا چې دګناه نه زه پاک شم. بلکل زمانه ګناه ونشي لکه انبیاء علیهم السلام چې معصوم دي.

دده په زړه کې له بدن څخه غږ وشو.

اولیاء دخدای پاک ﷻ چې کله یې تزکیه وشي نودازړه په خپله په یو کیفیت باندې اواز کوي.

په موجوده وخت کې یوخلیفه صاحب ماته دنفي اثبات کیفیت بیانوو ،ویل یې چې په نفي اثبات کې دا (الا الله ) په زړه باندې ووهي دوه کیفیته پیداکیږي ،چاته داسې کیفیت پیداکیږي چې لکه ګوته چې په زړه چوخ کړي داد( الا الله ) په ویلو سره ډاسې حالت پیداکیږي اوچاته داسې کیفیت پیداکیږي چې دا (الا الله) ووایې نوزړه هلته غږ وکړي محتاج ! یعنې زه محتاج یم رب تعالی ته.

نودابراهیم بن ادهم رحمه الله زړه ورته غږ وکړ چې دالله تعالی لطرفه هاتفې ورته ویل کیږي چې تول خلک زمانه عصمت غواړي چې دګناه نه یې زه وساتم ؛خوخدای پاک ﷻ ورته وایي چې زه رحمن اورحیم یم زه به بیا رحم په چاباندې کوم خودا انسان دی.

ګناه به کوي، دبشریت په تقاضا باندې بیا به دوی توبه وباسې زه
به بیا په دوی باندې رحم کوم.
نو چې دسړي نه څومره ګناهونه شوې وي چې په اخلاص توبه
وکاږي خدای پاک ﷻ یې معاف کوي، خو داخلاص توبه داده چې
دخدای پاک ﷻ داربه یقیني ورسره پیداکیږي په زړه کې به یې
یقین اوداقصد وي چې داګناه به بیا نه کوم اوکه سړی په ګناه
لګیاوي اوپه خوله وایې چې توبه مې ده داپه خدای پاک ﷻ باندې
پسخند وهل دي،خدای پاک ﷻ پدغه باندې سخت په غضب
کیږي ددغې وجې نه چې دانبیاوو اوصحابه کرامو حالت ګوري
چې دخدای پاک ﷻ دار ربنتیا دهغوی په زړونو کې څومره و؟

## حضرت عمر فاروق رضی الله عنه له خدای پاک ﷻ څخه څومره وېرېده؟

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به چې کله دقرانکریم ایتونه دوعید
اوعذاب خبرې واوریدلې نوله ډار به بې اوښه شو،حتی تردې
پورې چې یووخت کې یې دوښو یووچ ډکی راواخیست اوپه
ژړایې داویل چې کاشکې زه دا واښه وای، انسان نه وای. ژاړي
چې کاشکې زه خپلې مورنه وی څیږولی ،سره له دې چې حضرت
عمر رضی الله عنه هغه ذات ده چې حضرت نبي کریم ﷺ دده په مدح کې بې
انتها احادیث ویلي دي اودجنت زیری په دنیاکې ورباندې شوی
خوبیاهم حضرت عمر رضی الله عنه دخدای پاک ﷻ نه دومره ډاریږي چې

وایې دډېرې ژړا نه یې په مخ کې دوه تورې لیکې پیداشوې وې
چې دااوښکې به یې همیش بهیدلې. واقعي ډاردیته ویل کیږي.
حضرت ابراهیم علیه السلام دخدای پاک ﷻ پیغمبرده خودومره
به یې ژړل چې دژړا غږبه یې یو میل ته ورسیده.
یووخت کې خداوندمتعال ﷻ حضرت جبرائیل علیه السلام ورته
رالیږي چې ورشه زمادوست ته زما سلام ووایه اوورته ووایه چې
ته خوزما دوست یې؛دوست له دوست نه دومره ډاریږي ؟
حضرت جبرائیل علیه السلام چې دغه حال دخدای پاک ﷻ حضرت
ابراهیم علیه السلام ته بیان کړ چې واجب تعالی ﷻ په تاباندې
سلام وایه اوویل یې چې خلیل دخلیل نه دومره ډاریږي ؟
حضرت ابراهیم علیه السلام ورته وایې چې والله زمادې قسم په
ذات دخدای وي چې کله زه دخدای هغه عظمت شان اوصمدانیت
ته وګورم اوخپلو تقصیراتو ته وګورم زمانه داخبره بالکل هیره
شي چې زه دخدای پاک ﷻ دوست یم ،زه پیغمبریم اوزه خلیل الله
یم.
ددغې وجې حضرت یحیی علیه السلام به دومره ژړل چې دډېرې
ژړانه یې دمخ غوښې تویه شوې وې ،حتې مورمبارکې یې په
داغومبرو مبارکو باندې وړیه اووژغنې ګنډلي چې هغه وښکې به
یې په هغوکې جمع کیدلې.
دخدای پاک ﷻ پیغمبرده، خدای پاک ﷻ یې په قرانکریم کې
صفت کړی: ﴿ وَسَيِّدًا وَحَصُورًا وَنَبِيًّا ﴾.

داداسې پیغمبر ؤ چې په ټول ژوندیې دګناه اراده هم نه دې کړې
،خو هغه پیغمبر دخدای پاک له ډاره دومره ژاړي له ډېره ژړانه یې
دمخ غوښې تویه شوې وي.

حضرت عمربن عبدالعزیز چې دوخت بادشاه مقررشو دوه کاله
اوڅومیاشتې یې بادشاهي کړې ،دده دمینځې نه څوک پوښتنه
کوي چې حضرت عمر په دا دوه کاله کې څرنګه زندګې کوله ؟هغه
ورته وایې چې ډېر وخت به روژه ماتې ورته اینبی و دده به روژه وه
خوچې دخپل رعیت اوملک حالت به ورته یاد شول چې خدای
پاک ﷻ به ددغو پوښتنه له مانه کوي نوژړل به یې، ژړل به یې
تردې پورې چې روژه ماتی به همدغسې ورنه پاتې شو اوروژه
ماتی به یې ورنه ویوړ اوروژه به یې ماته نه کړه.

دده بي بي مبارکه وایې چې په دادوه کاله اوڅومیاشتو کې یې
دخپل اهل سره نږدېکت نه ده کړی چې زمانه به خدای پاک ﷻ
دقیامت په ورځ ددغه رعیت په باب کې سوال اوپوښتنه کوي زه
به بیاخداوندمتعال ته څهٔ وایم؟

هغه خلک چې دخدای پاک ﷻ نه په رښتیا ډارېږي اوچې بیا ګناه
ورنه وشي نو دومره ډار ورسره پیداشي لکه غرېې چې په
سرباندې رالوېږي اوکه یوڅوک په ګناهونوباندې همیش لګیا وي
زړه یې توریږي ،توریږي اخرګناه داسې ورته ښکاریږي لکه یومچ
یې چې په پوزه باندې تیرشي، له خدایه هم نه ډارېږي .

حضرت امام صاحب رحمة الله علیه چې په کوم ځای کې دفن
اوخښ دی په هغه ځای باندې ده مبارک اویا زره وارې قرانکریم

ختم کړی اوده دیرش کاله مسلسل روژې نیولې .دشپې په نفلوکې
به یې تول قرانکریم ختم کاوه. امام صاحب څلویښت کاله دسهار
لمونځ دماخوستن په اوداسه کاوه، لکن هغه حضرت امام صاحب
یووخت کې دماخوستن تلاوت کوي دسورت یس شریف دغه آیت
ته چې ورسیده چې :﴿ وَٱمۡتَٰزُواْ ٱلۡيَوۡمَ أَيُّهَا ٱلۡمُجۡرِمُونَ ﴾ یعنې ای
مجرمینو ا نن ورځ زماله نیکوبندګانو نه جداشئ ، نوایت مبارک
یې ویلو،ویلو اوترسهاره یې ژړل چې داسې نه چې دقیامت په
ورځ ماخدای پاک دمجرمینو په لست کې جدا کړي نوزه به بیا
هلته څۀ کوم؟
حضرت ابراهیم ابن ادهم به ویل چې که خدای پاک په ماباندې
غږوکړی چې :﴿ وَٱمۡتَٰزُواْ ٱلۡيَوۡمَ أَيُّهَا ٱلۡمُجۡرِمُونَ ﴾ چې ای مجرمینوا نن
ورځ زماله نیکوبندګانو څخه جداشئ . نوزه به بیاڅۀ کوم؟ لکه
هغوی خلکوته چې اعلان وشي چې زما دنیکو بندګانو نه جداشئ
دهغوخلکو ځای خوجهنم ده دهغوی ځای خواور ده،دهغوسزا خو
ماران اولړمان دي ؛نوزه به هلته بیاڅه کوم .
یودوه صحابه کرام حضرت نبي کریم ﷺسره ورونه کړې د
یوانصاري ؤ اوبل مهاجرؤ دامهاجرورور په جهادپسې تللی
انصاري ورور یې په کورپاته شو.
یووخت یې کورته غوښه راوړه هغه دمهاجر ورور ښځې ته یې
ورکوله چې دهغې لاس یې ولیدشیطان وریاندې غلبه وکړه هغه

لاس یې وروښیو اوښکل یې کړ،هغې ورته وویل چې دخدای پاک نه وډارشه!

ددغې خبرې په سبب هغه صحابي دومره وډارشو چې کورېې پرېښود اودښتې ته روان شو په ژړا یې شروع وکړه اوتل به یې ژړل.

کله چې هغه بل مهاجر مجاهد وروړله جهادنه راغی هرچاته خپل وروړ مختې ورغی اودده خپل وروړنشته چې ده ته مخې ته ورشي نوپه کورکې یې پوښتنه وکړه چې هغه زما وروړ چیرته ته ده؟ ښځې یې ورته وویل چې داسې وروردې خدای پاک چاته نه ورکوي ،دهغه اراده دبدعملي وه زمالاس یې مچ کړ خوماځان ورنه خلاص کړ.

هغه پوښتنه وکړه چې چیرته ده؟

دې ورته وویل چې داځوشېې کیږي چې په غروکې اوسیږي اوژاړې .نودغه صحابي ورپسې ولاړ چې په غره کې یې یوځای پیداکړ چې دی په ژړاه لګیاده نوداصحابې مبارک یې را روان کړ چې راغلل شپه ده دسهار په لمانځه کې رسول الله ﷺ دعذاب څه آیتونه وویل :﴿ أَلْهَىٰكُمُ ٱلتَّكَاثُرُ ۝ حَتَّىٰ زُرْتُمُ ٱلْمَقَابِرَ ﴾ ددغه صحابي مبارک له خولې نه چیغه ووتله په هغه ځای یې روح ووتله اووفات شو.

دهغو خلکوسره دخدای پاک ﷻ نه دومره ډار موجود ؤ چې واقعا خدای پاک ته څوک په اخلاص وژاړې نوداژړا ډېره مفیده ده.

په روایت کې راځي چې کله دقیامت ورځ شي دجهنم اور به دخلکو په طرف را روان شي ،خلک به ورته ووایې چې ای اوره، په روی دهغولمونځ کونکو چې خدای پاک ﷻ ته یې کړي دهغوی په روی ورګرځه ، دااور به نه ګرځي. بیاورته وایې چې په روی دهغوی روژه نیونکوچې خدای پاک ﷻ ته یې چاډېرې روژې نیولې وګرځه ! هغه به بیا نه ګرځي، دااوربه همدغسې را روان وي حضرت جبرائیل امین به راشي ووایې چې دې اور قصد دامت دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم کړی بیا به حضرت نبي کریم ﷺ ته د اوبو یو جام ورکړي چې دا اور ته ورواچوه.

کله چې داور طرف ته دایوجام اوبه ورواچوي نواور به مړشي حضرت نبي کریم ﷺ به پوښتنه وکړي چې داڅرنګه اوبه وي چې دومره غټ اور یې په یوه جام مړ کړ حضرت جبرائیل امین ﷺ به ورته ووایې چې دا دتا دامت دهغوګنهګارو خلکو دژړاو اوښکې ماجمعه کړې وي ددغې ورځې له پاره چې دهغو اوښکو په برکت به نن د جهنم له اور نه خلاصیږي.

په یوبل روایت کې راځي چې کله جنتیان جنت ته داخل شي اوپه منارو باندې کیني ښۀ خوراکونه ورته کیښودل شي پس دهغه نه داجنتیان په جنت کې حیران وي اعلان ورته وشي چې ای بندګانوزما! جنت خودحیرانتیا ځای نه ده دنعمتوځای ده تاسې ولې دانعمتونه نه خورئ ؟ دوی ورته ووایې چې زمونږ سره یوه وعده شوې وه دهغې وعدې وخت پوره ده که مونږ ته هغه وعده پوره شي؟ رب تعالی ملایکوته ووایې چې حجاب پورته کړئ چې

زما دیدار وکړي ددوی د دیدار وخت راغلی ملائکې ورته ووایې چې ای رب تعالی په دوی کې څوګنهګار موجود دي هغه دتاد دیدار کله لائق دي؟ خدای پاک ﷻ به ورته ووایې چې په دوی کې ذاکرین ؤ، په دوی کې باکیین (ژړاکونکي) ؤ. دهغو دژړا په برکت ماددوی ګناهونه ټول ببښلي،نوپرده پورته کړي چې دوی زما دیدار وکړي،بیا هلته حجاب پورته شي دخداوندمتعال ﷻ دیدار تولوته شروع شي داددغه ذکر ،ددغه ژړاو اثر ده چې څومره ګناهونه انسانانوکړي وي ددغو ژړا په برکت باندې چې په اخلاص خدای پاک ﷻ ته څوک وژاړي واجب تعالی دټول عمر ګناهونه وربښي، دټول عمر تکلیفونه یې لري کوي، اوبیا خپل دیدار ورپه نصیب کوي، زمونږ دایوساعت ناستي ،دپنځو میلټو ناسته خدای پاک ﷻ ته په اخلاص ژړا ددیرشو، څلویښتواواویا کالو عمرټول ګناهونه خدای پاک ﷻ ورباندې معاف کوي.

چې په اخلاص وژاړو اودخدای پاک ﷻ درضا له پاره دخپلو اعمالو وډارشو په روایت کې راځي چې کوموانسانانو چې ګناه وې کړي وي چې بیا خدای پاک ﷻ ته توبه وباسي اوورته په ژړا شي خدای پاک ﷻ هغه ګناوې دملائکونه هیرې کړي، ددوی دعمل نامې نه هغه ګناوې لري شي، بیا دقیامت په ورځ باندې دوی نه شرمنده کیږي، بیایې صرف حسنات اونیکي دخدای پاک ﷻ په حضورکې وي، بل هیڅ نه وي؛نوخدای پاک ﷻ یې جنت ته داخلوي اوخپل انعامات ورکوي، انسانان یودانسانیت په تقاضا به زمونږ نه ګناوې شوې وي اوکیږي به څوکه په اخلاص خدای

پاک ﷻ ته وژاړو او په اخلاص خدای پاک ته راجع شو بیا دا امید هم لرو چې واجب تعالی ﷻ د ډیر رحیم ذات ده، د ډیر کریم ذات ده، ترخپل موراو پلار نه اویا واري مهربانه ده، که خپل پلار مور ناراضه کړو، خپله مور مور ناراضه کړو او بیا ورشو بیرته د هغوی په لاسونو او پښو ورولویږو معافي ورنه وغواړو نو خپل مور او پلار مونږ ته ببښنه کوي ؛خورب تعالی ﷻ خو اویا واري ترهمغونه مهربانه ده چې رب تعالی ﷻ ته سړی په اخلاص وژاړي خداوند متعال ﷻ یې ټولې گناوې ورته معاف کوي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا و مولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين

الله

# (۳۸) مجلس

## دولایت شرطونه او د ولي نښې او علامې

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿الا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾

تفاسیر ددې ایت کریمه په تشریح کې دولي علائم اونښې ذکر کړي چې ولي چاته ویل کیږي اوشرط دولایت ذکر کوي چې په څه شي سړی مقام دبزرګي اوولایت ته رسیږي ؟

اول انسان چې داوغواړي چې زه دې دخدای پاک ﷻ داولیاء اودده ددوستانو له جملې نه شم،دولایت مقام دې ماته پیداشي ؛نوتفاسیرلیکي چې دوصول دولایت له پاره دوه لوی اوعمده شیان دي:

### صحبت

دحضرت نبي کریم ﷺ په وخت کې چې صحابه کرام مقام دولایت ته رسیدل شرط داوه چې دحضرت نبي کریم ﷺ سره به یې صحبت، محبت اوانقیاددرلود.

يعني اول شرط داوه چې دحضرت نبي کريم ﷺ سره به ډېر تعلق ناسته اوولاړه له هغه سره محبت اودهغه دحکمونوپيروي به يې کوله.

## ذکر

دوهم شی چې هغه معاون دهغه اول شرط له پاره ده چې هغه کثرت ذکر ده چې دحضرت نبي کريم ﷺ په حياة مطهرکې به صحابه کرامو ﷺ ته دولايت مقام پيداکيده هغه ټول پدې باندې ؤ چې دوی دحضرت نبي کريم ﷺ سره داشرطونه په کامله توګه باندې په ځای کړې و. اوهم يې دحضرت نبي کريم ﷺ سره کثرت مجالست ؤ شپه اوورځ دوی کوشش کاوه چې دحضرت نبي کريم ﷺ په مجلس کې حاضر ؤ.

له حضرت نبي کريم ﷺ سره يې په دومره اندازه محبت ؤ چې کله به صحابه کراموته حضرت نبي کريم ﷺ دډوډۍ په وخت کې ورپه ياد شو نوخوراک يې نشوای کولای،نوله ډېره عشق نه به يې هغه ډوډۍ پرېښودله اودحضرت نبي کريم ﷺ مجلس مبارک ته به ورغلل.

د حضرت نبي کريم ﷺ ته انقياد اوتابعداري دومره زياته وه چې کله به حضرت نبي کريم ﷺ دکوم شي امر وکړنوهريو به لبيک ورته ويلې، اوپه سر اوسترګو به يې هغه کارسرته رساوه، تردې چې يوځل حضرت نبي کريم ﷺ يوصحابي ته په جومات کې ،دخطبې په مابين کې وويلې چې کېښنه ،بل صحابي له جومات نه بهر را روان ؤ هغه دغه خبره واورېدله سمدستي هغلته کيناست.

امریې په جومات کې دننې صحابي ته کړی ؤ خوهغه بل صحابي چې نفس دحضرت نبي کریم ﷺ امر واوریده چې وایې کینه نوکیدای شي چې ماته یې ویلې وي نوهلته که لمر اوکه ګرمي وه په هغه ځای کیناست ،نودومره زیات انقیاد موجودؤچې ترڅوحضرت نبي کریم ﷺ نه ؤورته ویلې په هغه ځای ناست ؤ کله چې حضرت نبي کریم ﷺ ورته وویل چې تاته نه وایم راننه وځه بیا جومات ته راننوت.

اودحضراتوصحابه کرامو ﷺ ذکرپه دومره اندازه ؤ چې دحضرت نبي کریم ﷺ له طرف نه به چې دکوم شي فضیلت ورته ذکر شو نوشپه اوورځ به په هغه باندې لګیاول. نودحضرت نبي کریم ﷺ په وخت کې ټول صحابه کرام ﷺاولیاء الله اودولایت دواړه شرطونه په کامله توګه په دوی کې موجودؤ.

ځکه دادنااوواړه صحابي مقام ته حضرت اویس قرني نشي رسیدلی نو چې څوک غواړي چې مقام دولایت ورته پیداشي نودده له پاره داوده شرطونه دنائب دحضرت نبي کریم ﷺ سره پکاردی یعنې څوک چې واقعې دحضرت نبي کریم ﷺ په نقش قدم روان دي دهغه نائب، دهغه وارث وي چې عالم ،متدین اومتقي ورته ویل کیږي یاپه اصطلاح باندې شیخ اومرشد ورته ویل کیږي اول شرط داده چې هغه به دمشائخوپه صحبت کې ډېر شریک کیږي اوبیاچې شریک کیږي په غرضوباندې به نه وي،بلکې یواځې دخپل مرشد سره دمحبت په بناء به یوځای کیږي اوبیادهغه

له طرف نه چې کوم حکم ورته کیږي هلته به خپله رایه او خپل فکر دهغه په مقابل کې نه چلوي بلکې سمدستي به انقیاد وي.

دوهم شرط هغه داچې کوم ذکر اوکوم تلقین چې دهغه شیخ له طرف نه ورته وشي، نوهغه ذکر چې ډېرپه کثرت سره کوي نودغه ذکر سبب دمحبت ګرځي ،محبت چې څومره زیاتیږي فنافی الشیخ مرتبه ورته حاصلیږي کله چې فنافی الشیخ مرتبه ورته حاصله شوه دهغه نه وروسته بیا فنافی الرسول مرتبه ورته حاصلیږي له دېنه وروسته بیا فنافی الله مرتبه ورته حاصلیږي.

نودخپلو مشائخو سره دناستې اوولاړې په سبب محبت زیاتیږي ،دذکرپه سبب باندې محبت زیاتیږي څومره چې دالله تعالی ﷻ سره محبت وي دغومره دهغه له طرف نه فیض اوکرم راځي ،څومره چې دحضرت نبي کریم ﷺ سره محبت وي دغومره پدغه انسان باندې دخدای پاک ﷻ له طرف نه دده دمحبت په اندازه فیض اورحمت الهي نازلیږي، ځکه دحضرت رسول الله ﷺ یادنائب دحضرت رسول الله ﷺ سره مېنه ددین په خاطروي ،هغه ددې خاطروي چې دخداوندمتعال ﷻ له طرف نه مونږ ته امر شوی ،دخدای پاک ﷻ دامر په ځای کولوپه خاطر باندې وي نودهغه په محبت خدای پاک ﷻ راضي کیږي څومره چې داهل الله سره څوک محبت کوي الله پاک ﷻ ډېر درباندې راضي کیږي اوچې څومره دخدای پاک ﷻ رضا ډېره راتله دغومره پدغه انسان کې ترقي راځي.

نوبنیادي شي په خاصه توګه داهل طریقت له پاره داده چې د
یوملګري داکوشش وي دافکروي چې ماخه په داخپلو وظایفوکې
ترقي کړی وای، دهریوفکرداوي چې ماته خدای پاک ﷻ
دمقربینومقام راپه نصیب کړی وای، دهریوفکر داوي چې زه
خدای پاک ﷻ داولیاو له جملې نه ګرځولی وای نوداول نه داعلم
پکار ده چې په کومه لارزه خدای پاک ﷻته رسیږم نودادوه
شرطونه چې په کامله توګه دچاپه ځای ؤ،دخپل شیخ سره کثرت
مجالست،محبت اوانقیاد. دوهم ذکر داچې څومره دېرؤ پدغه
انسان کې خداوندمتعالﷻ داکمالات پیداکوي چې کوم کمالات
په اولیاء کې خدای پاک ﷻ وضعه کړي دي.

## داولیاووعلامې اونښې

دوهم داچې دهغو خلکو کومې نښې دي چې دهغوپه ناستې سره
انسان خدای پاک ﷻته رسیږي ؟
نوتفسیرمظهري ددې خلکو نښې اوعلامې داښودلې دي چې کله
دوی ووینې نوخدای پاک ﷻ انسان ته ورپه یادشي ﴿ اذانظر
ذکرالله ﴾ حدیث قدسي یې رانقل کړی چې خدای پاک ﷻ وایې
چې زه دچاپه یادشم زما دوست یې وریادیږي اوزمادوست چې
دچاپه یادشي زه یې په یادکیږم . له دواړه طرفونه داعلاقه ده.
داعلامه چې سړی دخدای پاک ﷻ دوست ووینې سړي ته خدای
پاک ﷻ ورپه یادیږي ،چې الله پاک ﷻدسړي ورپه یادشودخدای
پاک ﷻ دوست ورپه یادیږي داعلامه ولي ده؟ ځکه چې ددوی په

مابین کې علاقه دمعیت ده دغه انسان خدای پاک ته دومره نږدې شوی وي چې حدیث مبارک کې راځي چې رب تعالی ﷻ وایي چې زه دخپل ولي سترګې شم چې په ماباندې لیدل کوي، زه دده لاسونه شم چې په ماباندې نیول کوي، زه دده پښې شم چې په ماباندې تلل کوي.

اوس ددغه ولي په لیدلوسره سړي ته خدای پاکﷻ ورپه یادیږي ددغه په محبت سره سړی خدای پاک ﷻ ته نږدې کیږي همدغه یې وجه ده.

ددغه له پاره بیایوه بهترینه وجه داښیي چې لمر په څلورم اسمان کې ده دالمر په ټوله دنیاباندې لګیږي خولکن پُنبه (مالوچ) اورنه اخلي خوکه شیشه لمرته مخامخ کړي ددغه لمر انعکاس چې په شیشه کې وشو دهغې شیشې پړک چې په کوموما لوچوکې ولګیږي هغه لږورته ونیسي اور اخلي دالله تعالی اوددغه بنده په مابین کې یوه علاقه ده ته چې ددغه سره کیني دده په مجلس کې شریک شي نوهغه دخداوندمتعال فیوضیات دده په واسطه باندې تاته درنقل کیږي جذب پیداشي چېغې پیداشي ژړا پیداشي دالله تعالی ﷻ خوټول بندګان یو،ټول مسلمانان یودغه جذب،دغه ژړامخکې سړي ته نه پیداکیږي مسلمان وي، طالب وي ،ملاوي، مجاهدوي، ښه سړی وي ؛خوداسې کیفیت نه ورته پیداکیږي چې کله دخدای پاک ﷻ کلام اوري اوپه ده باندې جذب راشي ،کله دخدای پاک ﷻ نوم ذکر کیږي په ده باندې جذب راشي،داشي هلته نه پیداکیږي اوچې کله بیعت وکړي دمشائخوپه مجلس کې

کيني پدغه مجلس کې بيا داپيداکيږي وجه يې څه ده ؟ وجه يې داده چې هلته تفاسيرودغه مثال ورکوي لکه دلمر رڼا دلته دشيشې په واسطه مالوچوته مخامخ شوه ددغه دومناسبت دقرب ده،ددغه قرب له وجې دغه ژرااثرکوي،هلته پمبه زراور اخلي نودبنده دبنده سره مناسبت دغه زراثرکوي چې مريد دالله تعالی ﷻ سره دده قوي علاقه نوي موجوده دهغه له طرف نه اکتساب دفيض کامل نشي کولای لکه دخدای پاک ﷻنظام پدغه باندې جاري ده انبياء يې مقرر کړي دهغو په واسطه خلکوته فيض رسيږي انبياوو ته بيادملائکو په واسطه وحې نازليږي.

نوشيخ واسطه شودخدای پاک ﷻ اودمخلوق په مابين کې هغه فيوضات هغه انوار دخدای پاک ﷻله طرف نه په سينه دشيخ کې داسې ځای ونيسي لکه په هغه شيشه کې چې دلمر شعاع ځای ونيسي دادلمر پړک چې بيا دشيشې نه په پنمه ؤولگيږي پمبه اور اخلي نوددغه پيردسينې څخه چې کوم فيوضات دمريد په سينه کې لگيږي په مريدباندې اثر زيات کوي فيض زيات وي بياجذب اوهرڅه ورته پيداکيږي يعنې مخکې نه اوس دلته پيداکيږي اوس نودولي دولايت شرطونه دادوه دي.

موږ اوتاسې علی العموم دموجوده وخت خلک دمخکنيوخلکو په نسبت باندې دا کمزوري راپکې پيداده چې اول که امي ده له عالم سره،که شاگرد ده او له استاذ سره،که مريد ده له پيرسره هغه اول شرط چې کثرت مجالست ډېره ناسته اوولاړه ،محبت اوانقياد دانشته،عوام دعلماووسره دومره تعلق لري چې صرف په جومات

کې ورسره یوځای شي لمونځ وکړي بس نورخلاص دي ،له هغه سره ناسته ولاړه نشته.

دوهم که بیاوي هم کله - کله هغه دشخصي ګټو له پاره وي ،محبت نوي . دریم که دعالم له طرف نه حکم ورته کیږي منل نوي ځکه په عواموکې ترقي نه راځي، طالبان دخپلو استادانوسره هغه پدغه لحاظ سره دي چې داستاذسره تعلق پدغه معناباندې نشته چې محبت وي، دهغه داخلاقو زده کول وي،ناسته ولاړه وي اودهغه حکم ته انقیاد وي مریدان دخپلو مشائخو سره دغه شرط نه په ځای کوي چې ددوی هلته ناسته اوولاړه ډېره شي دهغو سره یې محبت پیداشي اوبیاچې دهغه له طرف نه کوم هدایت ورته کیږي په هغه باندې عمل موجود شي مخکې هرڅوک سړی چې داولیاووطبقاتو ته وګوري په ډېر کم شي به بزرګان کیدل ځکه محبت ،اخلاص ،انقیاد به و، که هرڅوک په اخلاص انقیادوکړي بیاهرسړي ته دخپل محبت ،انقیاد اواخلاص فیض پیداکیږي.

دوهم زمونږ په ذکرکې سستیاوي اصل کې خوباید په ټولوحالاتوکې سړی په هوش کې وي دخدای پاک ﷻ له ذکرنه غافل نه وي لکه مخکې چې دتصوفو په اصطلاحاتوکې چې هغه په لاندې ډول دي: هوش دردم،نظربرقدم، خلوت درانجمن ،یادکرد،یاداشت، بازګشت،وقوف عددي، وقوف قلبي، ددې تفصیلي بحث تیرشوی چې ددې نه مقصد داده چې دانسان نه غفلت لرې شي اوچې غفلت ورنه لرې شو په هرآن کې یې خدای پاک ﷻ په یاد وي بیادخدای پاک ﷻ له طرف نه هروخت په ده

باندې رحمت ده اوداچې سړی په جمعه کې یوه ورځ وظیفه کوي داچې سړی په دریوياخلورو میاشتو کې خپلومشائخوته ورشي بیاهم خپل مناسبات پالي په بازارکې ګرځي راغلی به هم په داسې نیت باندې وي چې هلته یې یوکار پیداشي بیا وایې چې درځه خلیفه صاحب ته به هم ورشو یوساعت به ورسره کینو مجلس به ورسره وکړو بیا نوتقاضا یې هم ددې وي چې که دی مریض وي،که دی مصروف وي که هرڅنګه وي دی به زماسره وظیفه کوي،نه داسې نده لکه چې داخبره چې یوساعت داولیاء سره له سل کالوبې ریا عبادت نه بهترده هغه هرساعت نه ښیي مولنا اشرف علي تانوي رحمه الله لیکلي دي چې داهغه ساعت دی چې شیخ په غلبه دحال کې راشي دجذب کیفیت ورته پیداشي اوس دبزرګ سره چې ته پداسې وخت کې کیناستي چې دی مظهردصفاتوجمالیو دخدای پاک ﷻ وګرځیدو دواجب تعالی ﷻ درحمت دورازه په ده خلاصه وه نوپه هغه ساعت کې دتاپه یوساعت کې دسلو کلنوبې ریا عبادت کارکیږي ؛نودېر ورځه په ختمونوکې ډېر کینه شرکت کوه په مجلسوکې شرکت کوه چې په داسې مجلس دي خدای پاک برابر کړي چې په هغو باندې دخدای پاک درحمت دروازه راخلاصه شي په غه ان کې چې بیا ته ورسره ناست وي دابیا خدای پاک ﷻ نه کوي چې پده رحمت نازلوي اوپه تایې نه نازلوي چې دخدای پاک ﷻ رحمت یووار متوجه شو بیا پدغه مجلس کې که هر قسم سړی ناست وي په ټولو دخ‍ـ‍ای پاک

❁ رحمت کیږي نو په یو ساعت کې دسلوکلنو بې ریا عبادت ثواب سړي ته نصیب کیږي.
مطلب په دې خبروکې داده چې که همیش مونږ وژاړو نوزمونږ خدای پاک ته که په شریعت نه یوبرابر، که مونږ اوتاسې همیش دژړا مجلسونه وکړو؛خوچې اصول دطریقت نوي راته معلوم په هغه باندې نه څو صرف په ژړاباندې خدای پاک خوراضي کیږي لکن داچې دا ژړا مې دخدای پاک له پاره ده؟ لکن په عین ژړا کې به یې نیت ریاوي ،شیطان بهٔ دوکه کړی وي نواوس دلته پدغو مجلسو کې دشرکت به فائده داوې چې هلته کیني نواخلاص محبت پیداکیږي بیاژړاهم دخدای پاک ❁ درضا له پاره شي بیاګفتاراوخبره هم دخدای پاک ❁ درضا له پاره شي،بیاناسته اوولاړه هم دخدای پاک ❁ درضاله پاره شي، چې هرشی دخدای پاک ❁ درضا له پاره شو بیا دخدای پاک ❁ له طرف نه پدغو انسانانورحم کیږي.

## دحضرت بِشر حافي قدس سره دتوبې اولقب سبب څه و؟

حضرت بشرحافي رحمه الله دخپل وخت شراب خور ؤ ؛خویوه ورځ په لارباندې روان د ه په کاغذباندې بسم الله لیکلي اوپه مردار خاۍ کې پروت ده ،ده ولیده نودی که فاسق هم ؤ خو مسلمان ؤدالله پاک ❁ دنومونوبې عزتي یې چې ولیده په زړه کې یې درد پیداشو اودېر په مینه اومحبت سره یې داکاغذراواخیست په خوشبویي

عطرو باندې یې صفاکړ اوبیا یې په پاک ځای کیښود دشپې دهغه وخت یوبزرګ په خوب ویني چې خدای پاک ﷻ ورته وایې چې ورشه بشرحافي ته اووایه چې (طیبت اسمي فطیبنك) تازمانوم خوشبویي کړماته خوشبویي کړي . (بجلت اسمي فبجلناک) تازما دنامه عزت وکړماته عزتمندوګرځولي (اطهرک اسمی فطهرناک) تازما نوم له ګندګیونه پاک کړ ،ماته له ګناهونوڅخه پاک کړي.

داسې دهرالفاظ ورته ذکرشوي چې دتانوم څوک اخلي زه به هغه هم عزتمن کوم.

بزرګ راپه حال شو بیا ویده شو دغه خوب ویني بیا ویده شو بیا دغه خوب وین سهار روان شو بشرحافي دشراب خوروپه میخانه کې ناست ده دغه بزرګ ورغی دروازه یې وټکوله څوک ورته راغلل پوښتنه یې خینې وکړه چې بشرحافي دلته شته (داحافي لقب وروسته بیا ورکړشوی) وایې هو! وایې ورته ووایه چې دباندې دې څوک غواړي هغه ورته وویل چې څه مې کوي زه په نیشه کې یم دغه بزرګ ورته وایې چې ورشه چې درب تعالی له طرف نه مې پیغام درته راوړی.

بشرحافي چې داولي خبره واوریدله چې دخدای پاک له طرف نه پیغام درته راغلي نوملګروته یې ووېل چې زمانه نوره شراب خانه پاتې شوه دار ورسره پیداشو کیدای شي چې رب تعالی ﷻ زماپه باب کې یوحکم دعذاب نازل کړی وي اراده دعذاب شوې وي نوپه لوڅوپښو راووت په منډه باندې داولي ته چې راغی ولي داخوب ورته بیان کړ.

خوچونکې اخلاص ژانقیاد ژداخبره یې زړه ته ولویده نوپه اخلاص یې توبه ویسته چې ای رب تعالی ﷻ ادومره رحیم ذات یې چې تراوسه ماپه فسق اوفجورباندې وخت تیراوخودتا دنامه مې عزت وکړ پدغه دومره رانه راضي شوې چې زمادې ټولې ګناوې وبښلې نودځان سره تائب شو چې زه بۀ نورې ګناوې نه کوم.

بیا خداوندمتعال ﷻدوخت دومره لوی بزرګ ورنه جوړ کړ چې دی په لوڅوپښوګرځیده چاورنه پوښتنه وکړه چې ولې په لوڅو پښوګرځې؟ ده ورته وویل چې په هغه ورځ چې ماله خدای پاک ﷻ سره دوستي کوله زه پولوڅوپښوراوتلی وم اویا به یې ویل چې زمکه دخدای پاک ﷻ فرش ده، دباشاه په فرش له بوټوسره ګرځیدل بې ادبي ده خوخدای پاک ﷻ بیا دومره عزت ورکړچې په هغه کوڅه به چې دده کلی وچې په لوڅې پښې ګرځیده نوحیواناتو په هغه کوڅه کې بولي (تشې اوډکې متیازې) نه کولې، اوښانو پچې نه کولې، غوایانو خوشیان نه کول.

یووخت کې یوبزرګ په لار روان ده چې دده علاقې ته راورسیده په کوڅه کې یې خوشیان اوپچې ولیدلې نوچیغې یې کړې چې آه بشرحافي وفات شوی؟ چاورته وویل چې ولې ده وویل چې حیواناتو داحال شروع کړی نومعلومیږي چې دی نشته، که نه د رب تعالی ﷻ په ده باندې دومره رحم ؤ چې حیواناتو دده احترام کاوه، چې ورغی پوښتنه یې وکړه هغه په ربښتیا وفات شوی و.

دخدای پاک ﷻ دنامه (بسم الله)داحترام په وجه یې بزرګي ته ورسیده خوپه اخلاص اومحبت ؤ چې سړی دغه نوم دالله ته په زړ

کې ځای ورکړي اودغه نوم دالله تعالی ﷻ په روح کې ځای ورکړي په سري،خفي اواخفاکې یې ځای ورکړ،په بدن کې یې ځای ورکړي اواخلاص باندې یې ووایي ،په محبت باندې یې ووایې ،په شوق باندې یې ووایې بیا به سړی د کالونوکالونومزل په میاشتوکې سرته رسوي.

نوغرض داچې که مونږاوتاسې غواړو په دین کې ،په تقوی کې ترقي وکړو اود نیکوخلکو له جملې نه شو ،دخدای پاک ﷻ ددستانو له جملې نه شو نومونږبه دخدای پاک ﷻ له دوستانو سره په صحیح معنامحبت کوو دهغوسره به ناسته اوولاړه کوو دهغودهغه ارشاداتوموافق به په وظیفوکې عمل کوو اوهغه ذکربه په کثرت سره کوو په عقیده باندې به یو بیا به خدای پاک په موږاوتاسوکې دا اثرپیداکوي.

ځکه حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي :(المرء مع من احب) چا چې له چاسره محبت وي دقیامت په ورځ به له هغوسره راپورته کیږي.

**وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین**

# (۳۹) مجلس

## دحضرت نبي کريم ﷺ معجزې په نباتاتوکې

په کمالات دحضرت نبي کريم ﷺ کې دځۀ معجزاتو اوحليه مبارکې دده مخکې مونږ بيان کړي دي ،څه معجرات دحضرت نبي کريم ﷺ په نباتاتو اوجماداتوکې چې په بوټواوونوکې دده څه کمالات اومعجزي ښکاره شوې دي اوپه غيرذی روح ؤ ځوشيانوکې دده کوم کمالات معجزې ښکاره شوې دي دهغو بيان به څه ناڅه وکړو

دحيواناتو خبره باربار ذکر شوې ده کتابونه مجموعه معجزې دحضرت رسول الله ﷺ (۳۰۰) درې سوه ذکرکوي خومن جمله دهغونه يوه واقعه په روايتوکې داراځي چې حضرت نبي کريم ﷺ ويده ؤ دلرې نه يوه ونه دځپل ځای نه را په حرکت باندې شوه ديوه طرف نه په بل طرف باندې ښوريده تردې پورې چې دحضرت نبي کريم ﷺ حضورته حاضره شوه کله چې حضرت نبي کريم ﷺ دخوب نه راويښ شو صحابه کرامو ﷺ عرض وکړچې داونه دفلانکي ځای نه پخپله راروانه وه تردې پورې چې تردې ځايه راورسيدله، حضرت نبي کريم ﷺ ورته وايې چې دغې ونې له خدای پاک ﷺ نه اجازه غوښتې وه چې زماسلام ته راشي خدای پاک اذن ورته ورکړ

له حضرت رسول الله ﷺ سمدستي ددغې ونې سره خبرې شروع
کړې اوپه سلام باندې لګياشوه وې ويل :السلام عليك يارسول الله
چې دآواز يې تولو حاضروخلکو واوريده اوپس له هغه نه داونه
روانه شوه اوپه خپل ځاى باندې بيرته ودريده.
په يوه بله واقعه کې حضرت رسو الله ﷺ دملګرو سره يوځاى په
سفر تللى په يوه سفرکې اراده دقضاى حجت ورته پيداشوه ،چول
بيابان دى دفناى ځاى نشته چې دى فناځاى ته لاړشي هغه خپل
ضرورت رفعه کړي روايت کې راځي چې دوې ونې لري ولاړې وي
حضرت رسول الله ﷺ ورغى دايوه ونه يې دخاښ نه راونيوه چې
دى زماطاعت وکړ په اذن دالله تعالى باندې داونه پسې راغله
ترنيمايي پورې يې دايوه ونه راوسته بيا ورغى هغه بلې ونې ته
هغه يې له خاښ نه ونيوه دخداى پاک په حکم چې راځه په ماپسې
هغه پسې راروانه شوه چې کله دواړه ونې سره نږدې شوې خاښونه
يې سره ونښتل پس دهغه نه يې حکم ورته وکړچې تاسو خاښونه
په ماباندې راتاوکړي .راوي وايې چې حضرت رسول الله ﷺ په
دامجموعه خاښوکې داسې پټ شو چې هيڅا هم نه ليده خپل
ضرورت يې رفعه کړ،دضرورت له رفعه کولو نه پس ونوته يې
حکم وکړچې هره ونه دې خپل ځاى ته لاړه شي.
بل اعرابي راغى حضرت رسول الله ﷺ ته عرض کوي چې ته ماته
يوه معجزه راوښيه چې زما دتاپه نبوت باندې يقين نورهم
مضبوط شي حضرت رسول الله ﷺ ورته وويل چې څه معجزه
غواړي هغه ورته وويل چې هغه ونه که دتاپه حکم دتاپه طرف را

ده ورته وویل چې هغه ونې ته ووایه چې ( اجبي رسول الله ! ) درسول الله حکم قبول کړه یعنې راشه .
روانه شي
اعرابي ورغی ونې ته یې دحضرت رسول الله ﷺ حکم وویلې ونه یوطرف اوبل طرف ته په ښورېدلوشوه ریښې یې راوختې راغله دحضرت نبي کریم ﷺ حضورته صحابي ورته وایې ﴿حسبي حسبي﴾ کافي ده کافي زماکامل یقین پیداشو دتاپه نبوت اومعجزې باندې بیاداصحابي ورته وایې چې ای رسول الله ! ماته اجازه وکړه چې زه تاته سجده وکړم حضرت نبي کریم ﷺ ورته وایې چې دخدای پاک نه بغیر بل چاته سجده نشته که ماحکم کولای نوښځوته به مې حکم کړای وچې خپلو مېړوته سجده وکړي وروسته هغه صحابي دحضرت نبي کریم ﷺ دلاسو اوپښو مچولواجازه وغوښتله حضرت رسول الله ﷺ اجازه ورته وکړه دحضرت نبي کریم ﷺ لاس مبارک یې هم مچ کړاودده پښې مبارکې یې هم مچ کړې. داپه نباتاتوکې یعنې شنوشیانوکې دده معجزې دي چې هغه خدای پاک ﷻ دده دنبوت تائید ،دده دنبوت تصدیق ،دده نبوت محکمتوب خبره خلکوته ورښوده.

## په جماداتوکې دحضرت نبي کریم ﷺ معجزې

په جماداتوکې چې روح نلري اودحضرت نبي کریم ﷺ معجزې په کې ښکاره شوې دي څوواقعات دي :

يوه واقعه په تابعداري دوريځي ده حضرت نبي کريم ﷺ په خطبه لګيا ده يواعرابي (کوچی) ورته راغی اوورته عرض کوي چې يارسول الله ! مالونه مړه شول ،عيالونه مودوچکالي له وجې تږي دي نږدې ده چې هلاکيږي،بارانونه نشته نوته دعاوکړه چې خدای پاک ﷻ باران وکړي په روايت کې راغي چې حضرت نبي کريم ﷺ دستي لاسونه پورته کړل اوصحابي قسم کوي چې ټول اسمان کې بيخې وريځ نه وه چې حضرت رسول الله ﷺ لاس پورته کړل دعا شروع شوه ددعا دشروع کيدلو سره دغروپه شکل وريځي ديواوبل طرف نه رارواني شوي چې دمدينې منورې په سرحد باندې راغلي سره يوځای شوي حضرت نبي کريم ﷺ لاسونه په مخ راتيرکړل دعايې ختمه کړه باران شروع شو دممبرمبارک نه لانه و کوز شوی چې دده دږيرې مبارکې نه اوبه وبهيدي يوه جمعه مسلسل بارانونه ووريدل پس له هغه نه بله جمعه کې دی په خطبه لګيا ده هغه شخص يابل څوک ورته راغی چې يارسول الله ! کورونه موړنګ شول،مالونه مو‌ډوب اوبويوړل رب تعالی ﷻ ته دعاوکړه چې دابارانونه ودره وي حضرت نبي کريم ﷺ لاسونه پورته کړل دادعايي وکړه﴿ اللهم حوالينا لاعلينا﴾ ای خدايه ! زمونږپه چارچاپيره غرونوکې بارانونه اووروه چې مونږ ته يې فايدې ورسيږي اوزمونږ کورونه نه ړنګوي تاوان نه راکوي وايې د دعالاسونه يې لا نه و ښکته کړي چې باران ودريده او وريځ بيرته چې دکوم طرف نه راغلي وه هغه طرف ته ولاړه اسمان بيرته صفاوکرځيده .

## دحضرت نبي کريمﷺ د (شق القمر) معجزه

وريځ روح نلري جمادغوندي شی ده وايې دادحضرت نبي کريمﷺ معجزه وه چې دده په دعا سره يوځای شوه اودده په دعاسره بيرته تيت پرک هم شوه يوطرف ته اوبل طرف ته ولاړه.
بله معجزه په جماداتوکې چې ډېره مشهوره ده او په قرانکريم کې هم ذکرده،هغه دسپوږمۍ دوه ټوټې کيدل دي :﴿ اَقۡتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانۡشَقَّ الۡقَمَرُ ﴾.
له حضرت نبي کريمﷺ نه دمکې مشرکينو دامعجزه وغوښته چې مونږ به هلته دتا نبوت ومنو چې سپوږمۍ راشي اوستا په ګريوان کې ننوزي اونيمه له يولستوڼې اونيمه له بل لستوڼي څخه بهرووزي . نوخدای پاکﷻ همداسې وکړل،سپوږمۍ دوه ټوټې شوه اودا ننداره تقريبا(۵۹) ملکونوکې ليدل شوې اوداپه نقشوکې اوس هم شته.

## داسطوانة الحنانة واقعه

بله معجزه دحضرت نبي کريمﷺ په جماداتوکې داده چې دحضرت نبي کريمﷺ په مسجدمبارک کې وچې خرما ډډ و. دهغې په څنګ کې به يې خطبه ويله اوهغې ته به يې تکيا کوله کله چې صحابه کرامو﷢دحضرت نبي کريمﷺ له پاره ممبر جوړکړ په کومه جمعه

کې چې دی مبارک په ممبر کیناست اوپه ممبرې خطبه وعظ اونصیحت شروع کړدغې وچې خرما مبارکې په ژړا شروع وکړه په داسې کیفیت باندې یې ژړل چې داټولوخلکوددې ژړا واوریدله نږدې وه چې له ډېرې ژړانه دوه ځایه شي.

حضرت رسول الله ﷺ دممبرنه ورته راکوزشو داخجورې مبارکې ډډ یې په غیږ کې ونیوسوکه دهغې ژړاه بیرته قراره کیدله ترهغه وخته یې نیولې وه چې ترڅویې ژړاورکه شوه . اوس هلته ددغې خرما په ځای باندې متېه ده په نامه (استوانة الحنانة) یعنې ژړاکونکې متېه.

دادهغې وچې خرما ځای ده چې دحضرت نبي کریم ﷺ په فراق باندې یې ژړاکوله.

جماد ده – روح نلري- وچې لرګی ده دحضرت نبي کریم ﷺ قدریې پیژانده دهغه په جدایي باندې یې ژړل.

علامه رومي پدغه مناسبت شعر وایي:

سندت من بودم ازمن تاختی

سندت برجای دیگر ساختی

دتادتکیه ځای زه وم زمانه لاړې اودتکیه ځای دې بل پیداکړ په بل ځای باندې کیناستې.

دلته محدثین کرام لیکي چې وچې ډډ دخرماکې دحضرت رسول الله ﷺ سره دومره محبت موجودؤ نوانسان چې عقل لري ،علم

لري،شعورلري دامتي کیدلو دعوه لري خدای پاک ﷻ جنت ورکوي ،خدای پاک دیدارورکوي،خدای پاک ﷻ خپله رضا ورکوي ، هغه څومره مقامات چې ورته پیداکیږي ټول په محبت اومتابعت دحضرت رسول الله ﷺ باندې نودی به ولې په محبت کې له ونې څخه نه زیاتیږي ،چې ونه دده په فراقت دننه په جومات کې ژاړي صرف دومره ځینې جداشو چې مخکې یې تکیه په دې باندې کوله اواوس په ممبرباندې شوه نومسلمانان خوباید دهغه په فراقت بې انتهاي وژاړي.

ددغې وجې نه دحضرت نبي کریم ﷺ دوفات اوازه شوه حضرت عثمان ﷺ په ژبه ګونګی شوه خبرې یې نشوای کولی . حضرت عمرفاروق ﷺ لیونی شو عقل یې بالکل کارپریښود اوتوره یې راوخیسته اعلان یې وکړ چې که چادا وویل چې حضرت نبي کریم ﷺ وفات شوی ده زه به دهغه سرې سرپرې کړم.

دېرصحابه کرام ﷺ په سترګوړانده شول داوجه داوه چې لکه هغه ونې چې دزړه محبت درلود په فراقت یې ژړاکوله نودوی خوعلم لري، عقل لري دحضرت رسول الله ﷺ کمالات ټول ورته معلوم ؤ نوڅرنګه به دوی نه ژړل؟ ولې به دوی نه بې اوښه کیدل ؟ ولې به دوی نه ورباندې غمجن کیدل ددغې وجې په مرثیه دحضرت نبي کریم ﷺ کې بي بي فاطمه الزهری ﷺ چې دحضرت نبي کریم ﷺ کمکی لورده کله چې نبي کریم ﷺ دزنکدن نه مخکې په غوږ کې دې ته څه خبره وکړه یوواریې ډېروژړل اوبیایې وخندل وروسته بیا امهات المومنین ورنه پوښتنه وکړه چې ای فاطمې ! څرنګه دې

یو واروژړل او بیادې وخندل؟ هغې ورته وویل چې ومې ژړل په دې چې حضرت نبي کریم ﷺ راته وویل چې دازما مرض دمرګ مرض ده ددغه مرض څخه زه نه جوړیږم ددنیانه تلونکی یم نوپه دې خبره نوربرداشت مانشوای کړای څکه په ژړاشوم اوپه دې مې بیا وخندل چې حضرت رسول الله ﷺ راته وویل چې زماپه اهل اوعیال کې به ته زرراپسې راشې زماسره په بیرته دتاملاقات زروشي هغه وه چې شپږمیاشتیې دحضرت نبي کریم ﷺ دوفات نه بعد حضرت فاطمه رضی الله عنها وفات شوه.

هغه بي بي فاطمې رضی الله عنها دحضرت نبي کریم ﷺ په فراقت کې دغه اشعارویلي:

صبت علی مصائب لوانها
صبت علی الایام صرن لیالیا

یعنې دومره مصبتونه اوغمونه په ماباندې راغلل چې که هغه په ورځوباندې راغلي وای نوورځې به توره شپه ګرځیدلي وي.

ماذا علی من شم تربة احمد
ان لایشم مد زمان غوالیا

څه دې په هغه چاباندې چې چادرسول الله ﷺ دقبرخاوري بوی کړې وي چې په ټول ژوندباندې بیا هغه نورې خوشبویي بوی نکړي، څه ضرورت لري کوم چاته چې دحضرت رسول الله ﷺ دخاوري خوشبویي پیداده.

ددغې وجې نه چې صحابه کرام ﷺ دقبر دحالت نه راوګرځېدل
حضرت بي بي فاطمې رضی الله تعالی عنها دډېرغم نه حضرت
انس ﷺته وایې چې رسول الله ﷺ مو په خاورکې پټ کړ،زړونه
موساړه شول چې په ده باندې موخاوري واړولي؟
اهل بیت دډېرغټ مقام لري خوغم دومره غم ؤ چې حضرت رسول
الله ﷺ دمصبیت په متعلق کې وایې چې دچایوزوی وفات وي
صبروباندې وکړي دهغه له پاره جنت ده.دارنګه دوه زامن اودرې
زامن.چا وویل چې که دچایوزوی هم نه ووفات ؟دی مبارک ورته
وایې چې زما دامت له پاره زه پیش کش یم زما غم دومره غټ غم
ده چې تراولاد نه هم غټ غم ده، دچاچې اولاد یاقریب وفات شي
دومره لویه صدمه نه ده لکه دحضرت رسول الله ﷺ انتقال اووفات

نوحضرت نبي کریم ﷺ ته خدای پاک ﷻ ډېرېې انتهالوی کمالات
ورکړې ؤ

## دحضرت رسول الله ﷺ په حیواناتوکې معجزې

یو لیوه له یویهودي نه میږه وتښتوله شپانه ورپسې منډه کړه
دهغه لیوه نه یې هغه میږه
خلاصه کړه لیوه ولاړ په یوغونډۍ ودریده اوپس دهغه نه یې
داشپانه ته خبري شروع کړي چې هغه روزي چې خدای پاک ﷻ زما

له پاره مقرره کړې وه هغه تازماله خولې نه وویسته په هغه ورځ به بیا څه کوي چې ته نه یې زه یې شپون یم اوماته راپاتي وي.
دایهودي حیران شو چې حیوان (لیوه) خبرې شروع کړي تعجب یې وکړ،لیوه ورته وایې چې تعجب مه کوه تردې نه غټه دتعجب خبره داده چې په مابین ددغودووغرونو په منځ کې (مدینه منوره) یو پیغمبرپیداشوی دی چې دمخکینیوامتواوراتلونکي زماني ټول احوال بیانوي.
اوخلک یې بیاهم نه مني ټول واقعات بیانوي اودخلکوزړنو ته بیاهم نه لویږي.
هغه یهودي دستي له رمې نه حضرت نبي کریم ﷺ ته راغی اوهغه دده خبرې اواخلاق یې چې واوریدل دستي په اسلام باندې مشرف شو،دده په نبوت لیوه ورته شاهدي ورکړه.
نوغرض داچې حضرت رسول الله ﷺ ته چې خداوندمتعال ﷻ کوم کمالات ورکړي ؤنوهرڅوک چې دحضرت رسول الله ﷺ په تمامه معناتابع شي هغه ته هم هغه کرامات خدای پاک ﷻ ورکوي ،کوم چې په حضرت رسول الله ﷺ کې ؤ؛خوهلته معجزې ورته ویل کیږي ددغه ولي چې بیا کوم شی صادریږي هغه ته کرامت ویل کیږي ،که نه کرامات داولیاء داهم په حقیقت کې ټولې معجزې دحضرت رسول الله ﷺ دي اوداپه محبت اومتابعت پیداکیږي چې څومره سړی کمال غواړي نوهغه هلته پیداکیږي چې دخپل پیغمبر،دخپل متقداء په قول اوعمل باندې مقتدي اوتابع شي

چې هغه څۀ وايې اودى يې منې چې هغه څه كوي هغه دى كوي اوورته محبوب وي.

## د حضرت نبي كريمﷺ دمعراج په واقعه شرعي اوعقلي دلائل

دمعراج دشپې متعلق به يوه لنډۀ خبره درته وكړم چې بعض خلكوته دا اشتباه پيداكيږي چې په يوه شپه كې څرنگه حضرت رسول الله ﷺ دزمكې نه ترعرش عظيم پورې داوو(۷) اسمانونه تيرشو ،په يوه شپه كې دارڅرنگه كيږي ؟ اختلاف دېرده چې دادروح سفر ؤ اوكه دجسد سفرؤ خومختاره قول داده چې دى په روح اوبدن مبارك دواړوداسفر شوى . دآيتونونه هم معلوميږي اوعقلي دلائل هم موجود دي.

دآيتونوڅخه داآيت مبارك دى چې فرمايي: سُبْحَٰنَ ٱلَّذِىٓ أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِۦ لَيْلًا مِّنَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ إِلَى ٱلْمَسْجِدِ ٱلْأَقْصَا ٱلَّذِى بَٰرَكْنَا حَوْلَهُۥ ﴾ سبحان دتعجب په ځاى كې استعماليږي وايې دروح تگ هغه دخوب تگ وي په هغه كې څه تعجب نه پيداكيږي چې ماخوب وليدل چې زه اسمانوته وختم ځكه داخوډېرامتيان هم داخوبونه ويني خوهيڅوك هم ددغه نه تعجب نه كوي نودتعجب ځاى داده چې رسول الله ﷺ په وجود اوروح مبارك دواړو اسمان ته ختلى دى.

دوهم آیت شریف کې وایې (بعبده) عبد فقط روح ته نه ویل کیږي ،عبد روح اوجسد دواړو ته ویل کیږي نوددغه نه هم دامعلومیږي چې په بدن باندې اسمان ته ختلی ؤ.

دریم حضرت رسول الله ﷺ چې دام هاني رضي الله عنها کورته راغی چې دهغې له کورنه معراج ته تللی ؤ هغې ته یې داقصه بیان کړه هغه ورته وایې چې ګوره داقصه دې تامشرکینوته ونکړې هغوی به دتا مخالفت نورهم زیات کړي انکاربه کوي چې داڅرنګه پیښیږي نوکه دخوب خبره وای نوبیایې ولې ورته ویل چې خلکوته یې مه بیانوه ځکه ددوی به نورانکارزیات شي، ده ورته وویل چې نه زه پټول نه کوم چې څه مې لیدلي هغه به ټول خلکوته ښکاره کوم.

اوبل داچې دا روایت د(۲۵) صحابه کرامو نه دخلفاء الراشدینوپه شمول رانقل شوی چې رسول الله ﷺ (۷) اسمانواوعرش عظیم اولامکان ته تللی داشرعي دلائل ؤ.

## عقلي دلائل

اول داچې پدې کې دې څوک استبعاداوشک نه کوي چې څرنګه ترهغه ځایه په یوه شپه کې تګ کوي دانسان په تخنیک باندې انسان په خپله په میلټ کې څومره مزل کوي ،موټرې چې جوړ کړی داموټربیاپه میلټ کې څومره مزل کوي. جهاز یې چې جوړ کړی ده هغه بیاپه میلټ کې څومره مزل کوي، چې دانسان صناعت

دي ،کورلا موټرپه صحیح سړک په یوه میلټ کې یونیم یادوه
کیلومتره مسافه قطعه کوي.
دایف سوله جیټ طیاري یې جوړې کړي دي چې په میلټ کې
څومره کیلومتره مسافه قطعه کوي.
نودخدای پاک ﷻ مخلوق چې بوراق ده په هغه ځای باندې یې قدم
لګیږي چې چیرې یې نظرلګیدو نوبیا په هغه کې څه نادره ده چې
په دومره وخت کې دې ټول اسمانونه کتلی وي.
دوهم که ددې بجلي په ټوله دنیابالفرض یولین راتاؤ وي اودلته
چې دبرق هم هغه اصلي مرکزده بټن یې ووهل شي نوپه څوسکنډه
کې به ټولې دنیاته بجلي ونه رسیږي ؟ اوټول سائنسدانان په دې
متفق دي چې داماده ده روح نه ده نودغه ماده دانسان مصنوع ده
چې ده جوړه کړي هغه په سکنډ کې په ټوله دنیاباندې راتاویدای
شي اوکه بیایې مرکړې دټولې دنیا رڼاځي نودالله تعالی ﷻ په
قدرت کې ولي څوک دغه استبعاداوشک وکړي.
اوس دالیدل دسترګودي داسمان طرف ته وګوره تراسمانه نظر
ورسیږي ،له زمکې نه تراسمانه پورې چې دپنځوسو کالومسافه
ده داپه نیم سکنډ کې دانسان دسترګو شعاش وزي اسمان ته
رسیږي دادیدار پیداکیږي نودخدای پاک ﷻ په دیدار کې څرنګه
دا استبعاد وشي چې څرنګه په یوه شپه کې دې خدای پاک ﷻ
اسمانوته ورساوه.
دحضرت اسماعیل علیه السلام په غاړه باندې چاړه لانه
وکیښودل شوي چې حضرت جبرائیل امین ته حکم وشو چې ځان

ورسوه چې زما بنده ته څه تکلیف ونه رسیږي ؛نوپوستکی یې
لانوه پرې شوی چې حضرت جبرائیل امین ورته راورسیده دهغه
ځای نه څوزره کاله مسافه ده نودخدای پاک ﷻ په قدرت کې هیڅ
استبعاد نشته چې څرنګه رسول الله ﷺ په یوه شپه کې اسمانوته
لاړ،جنتوته لاړ،دخدای پاک ﷻ دیدارورته نصیب شو، ددغه نه په
کم وخت کې داشوې دي بلکې دشپې په څهٔ حصه کې داټول شوې
دي هیڅ استبعاد نشته.
بیا چې یوانسان دپیغمبر تابع شو داسې بصیرت ورته پیداکړي
چې په سکنډکې تراسمانه نه بلکې ترعرش پورې داټول
حدودخدای پاک ﷻ ورته کشف وګرځوي داټوله مسافه پدغو
سترګو لیدل کیږي نوهغه رب تعالی ﷻ پدې هم قادر ده چې خپل
محبوب دشپې په کمه حصه کې ترهغه ځایه ورسوي پدې کې
څوهیڅ استبعادنشته.
دحضرت رسول الله ﷺ تګ دخدای پاکﷻ دیدار ته دهغه عزت په
خاطریاندې ؤ چې داسې یوپیغمبریومخلوق پیداکوم چې هغه به
بیازه دغه لامکان ته راخیځوم دتاسې مشکلات به درحل کوي.
نوغرض مې داده چې مونږ اوتاسې په دې مجلس دذکرکې چې
کینو روژه نیسو ،لمونځونه کوو،طاعات اوعبادات چې څه شی
مومقصودوي پدغوټولوکې قرب الهي مقصود ده چې دخدای
پاکﷻ رضاراته پیداشي ،دخدای پاک ﷻ طرف ته نږدې شو
اودشیطان نه لرې شو دخداوندمتعال ﷻ رضا پیداکړو ،هغه
رضابې درضا دحضرت رسول الله ﷺ څخه نه پیداکیږي چې څود

وي روان شوی هغه ورنه خفه حضرت رسول الله ﷺ په نقش قدم نه
وي نو الله تعالی ﷻ بیا دهغه سړي څخه نه خوشحالیږي ،دادواړه سره لازم اوملزوم دي .

په قرانکریم کې دیته اشاره شوې ده :﴿ وَٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَحَقُّ أَن يُرۡضُوهُ ﴾ تفسیرجلالین لیکي چې الله تعالی اورسول الله ته یو ضمیر راجع شوی (ان یرضوه ) چې دا لائق په دې دي چې سړی یې راضي کړي مشرکین تاسې راضي کوي په دروا‌غو قسمونه درته کوي خوالله تعالی اورسول الله ﷺ ډېرلائق په دې دي چې دوی راضي کړی،دواړوته یې یوضمیرراجع کړی دااشاره ده دیته چې ددواړو رضایوله بله سره لازمه ده ،الله تعالی ﷻ ترهغه پورې له چاڅخه نه راضي کیږي ترڅوپورې یې چې حضرت رسول الله ﷺ نوي راضي کړی اورسول الله ﷺ ترهغه پورې له چاڅخه نه راضي کیږي ترڅوپورې یې چې خدای پاک ﷻ نوي راضي کړی .

مونږکه په نقش قدم اوسنتودحضرت رسول الله ﷺ روان شو هغه اتباع مختاره کو بیاامیده ډېر دی چې درسول الله ﷺ په رضا باندې دالله تعالی ﷻ رضا پیداکړو اوچې دچانه الله تعالی ﷻ راضي شو هغه ته به پدغه لمانځه کې هغه دمعراج مقام پیداکیږي کومه مشاهده چې حضرت نبي کریم ﷺپه معراج کې فوق العرش کړي ده ،په حالت دلمانځه کې عام کتابونه دحدیثو اوتفاسیرد وايي چې حالت دمشاهدي ده دغه حالت پیداکیږي ،دغسې انواردخداوندمتعال ورته لیدل کیږي هغه دیدار ورته پیداکیږي

حضرت رسول الله ﷺ په لمانځه کې ولاړ دلمانځه په اخيرصف کې
يو سړي لمونځ په صحيح طريقه ونکړچې کله يې سلام وګرځاوه
ورنه وې ويل چې اى فلانکيه ! لمونځ ولې په صحيح طريقه سره
نکوې؟ دتاسې څۀ ګمان ده چې زه مخته وينم اوشاته نه وينم؟
والله لکه مخته چې وينم همداسې شاته هم وينم.

محدثين کرام ليکي چې داځکه چې دلمونځ حالت دمشاهدي ده
چې په لمانځه به شروع شو ټول حالات خداى پاک ﷻ ورته
منکشف کول.

نوپه دغه لمانځه کې دغسې حالت سړي ته پيداکيږي چې په
اخلاص باندې يې کوي ،په متابعت ،خضوع ،خشوع اوعاجزي
باندې يې کوي چې دخداى پاک ﷻ مشاهدې کله سړي ته پيدا
کيږي دسجدي په وخت کې به هغه انوار دخداى پاک ﷻ سړى
ويني زمونږ مقصود دخداى پاک ﷻ رضا ده دخداى پاک ﷻ
رضابې له دين څخه نه پيداکيږي خودين چې څومره ښه کيږي اوپه
صحيح چوکاټ کې راځي دغومره هلته دخداى پاک ﷻ رضا ډيره
پيداکيږي هغه نيک اثار به پرې مرتب کيږي.

## دطريقت فائدې

دتصوف په اصطلاح،داولياء کرامو په اصطلاح چې څوک يې په
يونام سره بولي څوک يې په بل نام داځلورطريقي دي : نقشبنديه،
قادريه، چشتيه اوسرورديه.

ددغوبیعت کول مرید ته کومې فائدې رسیږي؟ دثبوت په هکله
یې خبره نه کوم ،هغه خوپه قرانکریم ،احادیثومبارکو اوپه اقوالو
دائمه وو ثابت دي هغه بار بار بیان شوې.
حضرت پیرذوالفقاراحمدنقشبندي صاحب په کتاب تصوف
اوسلوک کې لیکلي دي چې:

## بیعت اولاس نیوی دوه لویې فائدي لري

**اوله فائده:** چې څوک بیعت اولاس نیوی وکړي اوپه دې سلسلوکې
داخلیږي نومشائخ کرام په سالک اومرید باندې له مخکینیوټولو
ګناهونوڅخه په اخلاص توبه باسي نوخداوندمتعال یې
داګناهونوداسې پاکوي لکه دمورنه چې نوی پیداوي . څکه چې
زمونږ مشائخ کرام داتلقین ورته کوي چې له صغیره ګناهونو،له
کبیره ګناهونو،له حقوق الله اوحقوق العباد،حقوق الوالدینو،له
شرک خفي اوشرک جلي که زه پرې پویم اوکه نه یم پرې پو،
خداوندمتعاله له ټولونه مې توبه ده .
نوله هرقسم ګناهونوڅخه توبه ایستل کیږي .
**دوهمه فائده** : داتنهاپه لحاظ چې څوک وایې په اخلاص عقیده
اومحبت باندې په بیعت کې داخل شي خداوندمتعال ددغه بیعت
په برکت باندې دغه انسان له دنیاڅخه بې له ایمانه نه بیایي .

نوغته فایده یې داده چې په توبه سره یې خداوندمتعال له تولو ګناهونوڅخه صفا کوي ،داخري ورځي چې نورهیڅ مقامات دولایت هم نشي ورته پیدا خوچې ددغې طریقي عقیده ولري ،اخلاص اومحبت ولري په ورځ دزنګدن کې به یې خدای پاک ﷻ دشیطان له فریبونونه خلاص کړي اوبې له ایمانه څخه به له دنیاڅخه نه تیریږي.

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمين
وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا ومولانا
محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين

  

# (۴۰) مجلس

## په دنیاکې د نیکواعمالو بدله

هرانسان ته پکار ده چې دخوشیانو فکر وکړي یو دهغونه داده چې دعمل ثواب ته باید سړی متوجې شي چې دعمل ثواب خدای پاک ❋ مونږ ته څرنګه راکوي
چې دحدیثو واقعاتو ته انسان نظر او فکر وکړي په دنیاکې دنیکو اعمالو بدله هم خدای پاک ❋ ورښودلي چې ذریعه دنجات ګرځیدلي نوامید ده چې په اخرت کې هم دغه نیک عمل ذریعه دنجات اوکامیابي وګرځي.

### په بنې اسرائیلوکي د دریو نیکوانسانانو قصه

په بخاري شریف کې حدیث مبارک ده. مشهوره واقعه ده چې درې نفره په لاره باندې روان وُچې په دوی باندې باران راغی دباران له وجې دغره سیمې ته دیوه کمره لاندې غارؤ پدغه غارکې درې سره کیناستل تریوڅه وخته دلته پدې انتظارناست دي چې باران به ختم شي بیابه روانیږو چې په دې وخت کې دغره له سرنه یوه لویه تیږه راوښویده اودغارخوله یې مکمل بنده کړه.

دغودریونفرو له ډېر کوشش سره سره بیاهم دغه تیږه لرې نه کړای شوه اخردغودریونفرو په خپل مابین کې سره وویل چې اوس خودخلاصونه بله لارنشته بې ددې نه چې خپل عمل خدای پاک ﷻ ته متوجې اوشفې نکړو اوهغه ته یې وسیله وګرځوو کیدای شي چې ددغونیکواعمالوپه برکت مونږ خدای پاک ﷻ له دې مصیبت نه خلاص کړي .

په دغودریونفروکې یوه نفررب تعالی ته عرض وکړ چې ای رب تعالی !

زما په ژوندکې عمل داو چې شپون وم رمه مې پووله کله به چې مابنام شو هغه میږي به مې ولوشلي اول به مې شیدې موراوپلار ته ورکولي اوبیابه مې خپل اولاد ته ورکولي .

یوخت ناوخته شوم چې راغلم موراوپلارمې دواړه ویده شوې ونوزماً په دوی باندې زړه ونه شو چې دوی له خوب نه را بیدارکړم خوبل طرف ته مې هغه رمه میږي هم په دښته کې وي دغلو اولیوانو ډارهم ؤ چې که زه بیرته ورنشم کیدای شي چې لیوان څه تکلیف ورکړي ؛ نو ای خدای پاکه ! مادمور اوپلاراحترام وکړ ترسهاره ورته ولاړوم خپله رمه اومیږي مې پریښودلي اوپه دوی مې هم زړه نه کیده چې دخوب نه یې رابیدارکړم .

کله چې سهارشودوی په خپل طبیعت باندې راویښ شول بیامې شیدې ورکړي نوای خدایه ! که داعمل مادتا درضا له پاره کړی وي نودغه عمل په وسیله اوبرکت دغه تیږه لرې کړي چې زمونږ دخلاصون لارپیداشي .

نو تيره لږ وښيده اوځۀ چوله پکې پيداشوه.
دوهم سړی وايې ای رب تعالی ! زما داکالور وه ډېره ښايسته وه اوزه په دې باندې عاشق وم ، ددې نه مې دبدعملي ارزو درلودله.
هغې زما مطالبه نه منله.
خويووخت کې داډېرمحتاجه شوه په کورکې يې څه نه و اولاد يې وږې ؤ ماته راغله اوزمانه يې څۀ دکومک غوښتنه وکړه ماورته وويل چې زه به هلته دتاسره کومک وکړم چې ته زما سره بدعملي وکړې خودې دغې خبري ته زړه نه کيښوده بيرته ولاړه بيا درې څلور وارې راغله سوال به يې کاوه څکه چې دهغې ماشومان وږې، وژړل به يې نوبيا به مجبوره شوه بيازما کورته راغله بيا يې زمانه دکومک غوښتنه وکړه اومابه هغه خپله مطالبه ورته تکراروله هغې بيا ونه منله په څلورم وارډېرې مجبوري نه دانښخې ووېل چې زه به دتاسره بدعملي وکړم څکه زامن مې دلوږې نه مړه کيږي کله چې زه ددې دپښوپه مابين کې کيناستم اراده مې دبدعملي وکړه نوهغه ښځه وريږديده اوپه ډېر عجز سره يې راته ووېل چې دخدای پاک ﷻ نه ووډارشه ! دغه مهرمه ماتوه تراوسه مې بدعملي نه دي کړې،ګوره رانږدې نشي نوزه هم ورنه جګ شوم اوبدعملي مې ورسره ونکړه.
خداوندمتعاله ! دتادنامه له وجې په ماباندې دومره ډار غالب شو چې موقع مې پيداوه اوورنه جګ شوم اوددې سره مې چې څومره وس ؤ هغه مې ورسره وکړنوای خدايه ! که داعمل مادتا له پاره کړی وي ،داګناه مې ، ستا له ډارنه پريښې وي نوداتيږه نوره هم

لري کړي چې مونږ ته څۀ چوله پیدا شي نو تیږه یو څه نوره وښوریده او چوله پیدا شوه.

دریم نفر ووېل چې ای خدایه! ما یو مزدور د سهارنه ترماښام پورې نیولی ؤ هغه ته مې خپله مزدوري مقرر کړې وه. یو بل کس په نیمه ورځ کې راغی خو دا د نیمې ورځ مزدور هم دومره کار و کړ لکه چې هغه بل چې په ټوله ورځ کې کړی و نو ما د واړو ته پوره پوره مزدوري ورکړه، نو هغه ټوله ورځ یې چې کار کړی ؤ هغه خفه شو چې دی په نیمه ورځ کې راغلی ؤ دومره روپۍ دې ورکړې اوما چې ټوله ورځ کار کړی ؤ هم ماته دې هم دومره روپۍ راکړې.

ما ورته ووېل چې ګوره د تا برخه خومې نده کمه کړې تا ته مې چې کوم اجرت مقرر کړی ؤ هغه خو مې پوره درکړ خو دی خفه شو او ولاړ.

هغه مزدوري یې ماته پرېښودله روپۍ مې وانخستې ما په هغو روپیو باندې څۀ غله واخیسته ومې کرله بیا هغه غنم یا وریشې چې شنې شوې وامې خیستل خرڅې مې کړې څه حیوانات مې وریاندې واخیستل خو په دې مابین کې څو کاله تیر شول چې د هغو روپیو له وجې نه غواوې، میږې او اوښان هر څه پیدا شول.

یو وخت دا سړی ډېر محتاج شوی ؤ بیرته راغی نو ویې ویل چې سخت محتاج یم هغه ورځ چې د تا سره ما مزدوري کړې وه هغه مزدوري مې راکړه.

ما ورته ووېل چې دا بهر چې څومره پسونه، میږې او غوایان ولاړ دي هر څۀ ټول له خان سره بوزه. دا مې هغه د تا په پیسو باندې ډېر کړي

هغه يې تول له ځان سره بوتلل ؛نواى متعاله خدايه ! كه داعمل مادتا درضا له پاره كړى وي داتيره زمونږ له مخې لرې كړې نوداتيره نوره هم لاړه اولارخلاصه شوه .
په دنياكې ددنيا دخلكو نه دنيک عمل په ذريعه باندې خداى پاک ﷻ دوى ته نجات وركړ چې دخداى پاکﷻ درضا له پاره كه كول دعبادت وي اوكه ترک دګناهونووي هغه ذريعه دنجات ګرځي چې هغه يوه ګناه پريښې وه دخداى له ډاره هغه تيره خداى پاک ﷻ ورته لرې كړه اوهغه دو چې نيک عمل كړى و نودهغه په بركت هغه تيره خداى پاک ﷻ لرې كړه .

## ديوې ګناه د نه كولوپه سبب له د نياوي هلاكت نه خلاصيدل اوغيبي رزق وركول

په بنې اسرائيلوكې يوتجار ؤ ډېر نيک عمله انسان ؤ ،ده به په خپل لاس باندې شى جوړول اوبيابه يې په كلي كې خرڅول اوډېرښايسته ځواني خداى پاک ﷻ وركړې وه .
يوه ورځ ديوبادشاه دكورمخې ته تيريږي چې دبادشاه مينځې وليده نومنډه يې وايخسته خپلې باداري دبادشاه ښځې ته يې ووېل چې يوډېرښايسته ځوان په دې لارباندې تيريږي اوڅه شيان ورسره دي اوخرڅوي يې ، دې ورته ووېل چې دننه يې را وغواړه چې خپل مقصود ترې پوره كړو كله چې داښايسته ځوان كورته داخل شو دغې ښځې چې وليد نوطبعا ښځې ناقص العقل ناقص

الدين دي شهوت اوبدعملي په دوی باندې غالبه وي نوددغه سړي نه يې مطالبه وکړه چې ته به زمونږسره بدعملي کوي هغه ورته وويل چې ماتراوسه پورې داسې کارنه دی کړی داکار زه نشم کولای، دبادشاه ښځې ورته وويل چې يابه زمونږ سره داکار کوي اويابه ترهغه دلته بندي يې ترڅوبادشاه نوي راغلی چې هغه ته دې په لاس ورکړو دهغه خوښه چې پرېږدي او کنه ؟

مينځې ته يې وويل چې دروازې بندې کړه پس له هغه نه چې داسړی پوه شو چې مانه پرېږدي اودهغه وخت عادت داو چې دبام په سربه يې بيت الخلاء يادغسل يوځای جوړکړی ؤ نوده ورته وويل چې څۀ ځای شته چې زه پووارقضاء حاجت وکړم ؟ دوی ورته وويل چې هو! نوکله چې دبام سرته وخوت نوپه ژړاشو اوخپل نفس ته وايې چې ای نفسه ! اوياکاله دې دخدای پاک له داره عبادت کاوه اوس داويا کالونه وروسته په داسې جال کې واقع شوي چې داعمل دې وکړ داويا کالنوخواري به دې ولاړه شي ټوله به ضائع شي.

په بام وګرځيده دبام په سر چې د کوزيدلو لارپيداکړي خولار نه وه.له ځان سره يې فيصله اونيت وکړ چې ددغه بام نه به ځان اچوم مړ دې شم خوچې اخرت مې خراب نشي ،داويا کالوطاعت او عبادت مې ددغې ګناه له وجې خراب نشي.

کله چې ده دغورځيدلواراده وکړه خداوندمتعال ﷻ حضرت جبرائيل ؑ ته حکم وکړ چې زما دوست ،زماله داره ځان هلاکت ته اچوي ځان دګناه نه ساتي ،ځان ورو‌ره سوه چې ګوره درنه خوږ

نه شي. نو چې ده دبام نه ځان اچولو حضرت جبرائيل ﷺ په وزرکې وينو اودزمکې په سرباندې يې کيښود هغه سامان هم هلته په هغه کورکې ورته پاتې شو.

بيګاه چې کورته راغی ښځه ورته وايې چې څه دې راوړي ؟ دی ورته وايې چې هيڅ شی مې نه دي راوړي.

ښځه ورته وايې چې هغه خپل سامان دې څهٔ کړل ؟

ده ورته وويل چې هغه غلورانه وې وړل اوپه کورکې يې دومره شی نه ؤ چې اور پرې بل کړی وای اوڅه خوراک يې ورباندې برابروای.

اخر داخپلې ښځې ته وايې چې هسې په تناره کې اوربل کړه څکه هغه دهمسايه ؤ کورونه خفه کيږي که زمونږ په کورکې اورنوي بل کيدای شي چې زمونږ په حال باندې خفه اوپريشانه شي ،مونږ ته به يې انديښنه وي چې ددغوپه کورکې اورنه بليږي نودغه خواران دخوراک څهٔ نه لري مونږ به خدای پاک ﷻ ته صبروکړو خواوربل کړه ،ښځې يې په تناره کې اوربل کړ،څهٔ وخت بعد دهمسايه دکورښځهٔ راغله هلته خو ګوګړ نه و دسکروټو په ذريعه به يې اورونه بلول ،ورته وايې چې په تناره کې څهٔ سکروټې شته چې زه يې ويسم اوخپل اور ورباندې بل کړم ؟

ددې تجارښځه ورته وايې چې هو هغه ښځه چې تناره ته ورغله دتناره سر يې لوڅ کړ چې ګوري چې تنور تول له مړيونه ډک دی او مړيه پخې دي اوډيربهترين خوراک ده ،غلمينه مړی ده،دلته دغې ښځې ته يې غږ راوکړ چې ته ناسته يي مړي دې وسوځلې ،تولې پخې دي ،داښځه چې ورجګه شوه چې ګورې تنور دګرمو

مړیونه ډک دی ،مړي یې راویستي ،دابنځه پدې پوه شوه چې زمامیړه په خدای پاک ﷻ ډیرګران دی نن چې دده سره هرڅاخه کړې دي دهغه په مقابل کې خدای پاک ﷻ زمونږ په تناره کې غیبي مړي پیدا کړي

نوبنځې ناقصه وي داخپل میړه ته کلکه شوه چې ته دخدای پاک ﷻ سره دومره عزتمند یې نوته سوال وکړه خدای پاک ﷻ ته چې دامسکنت زمونږ له کوره لرې شي چې اینده ژوندموپه راحت باندې شي . هغه ډېرورته وویل چې دغه مسکنت اوفقرزندګي مونږه ده چې خدای پاک ﷻ په اخرت کې انعامات اوبدلې راکړي

هغه ورته ټینګارکوي چې نه اخردشپې داسړی جګ شو په لمانځه ودریده ښځه یې ویده ده دلمانځه نه بعدخدای پاک ﷻ ته سوال کوي چې ای رب تعالی ! زما اهل اوزمابې بې مانه پرېږدي ته مونږ ته دومره شی راکړي چې ظاهري مسکنت مولرې شي دکور ګذاره وباندې روانه شي ، په دې حال کې چې دی دعاکوي پاس دچت له طرف نه یولاس راکوزشو چې په دې لاس کې یوډېر قمیتي غمی اېښی ده اوورته وویل شو چې درواخله ،ده چې داغمی ولیده دستي یې دابنځه په ښبه وچوخوله چې هغه راوېښه شوه هغې وویل چې څه دي ده ورته وویل چې درواخله داغمی چې غوښت دې هغه ښځه ورته وایې چې ولې دې ویښه کړم ماخوب لید چې اخرت وي اوپه جنت کې یوه بهترینه بنګله وي ډېر ښایسته جوړه وي خویوخای پکې کندو وي ماپوښتنه وکړه چې دابنګله دچاده ملائکو راته وویل چې دادتا دمیړه ده .

ماورته وویل چې دایوځای یې ولي کنډوده هغوی راته وویل چې دابرخه یې په دنیاکې وغوښته نوځکه موداخرت بدله ورنه کمه کړه نوداښځه ورته وایې چې داخرت بنګلي دتازه نه خرابوم بیرته خدای پاک ﷻ ته سوال وکړه چې داشی لرې کړي خوچې اخرت زمونږ خراب نشي ،بیادی سوال کوي خدای پاک ﷻ ته هغه لاس پورته شو اوهغه غمی یې ویوړ.

دخدای پاک ﷻ درضا له پاره یې ګناه پریښودله دچت نه یې ځان وغورځولو خوخدای پاک ﷻ ملائکه ورته راولیږله ددنیوي هلاکت نه هم بچ شو،مسکنت ؤ هغه شی یې چې دروزي سبب ؤ دهغه په مقابل کې غیبي روزي خدای پاک ﷻ ورته پیداکړه اودسوال په وخت کې خدای پاکﷻ دده سوال قبول کړچې داسمان نه غمي ورته راتلل.

## د حضرت حبیب عجمي (قدس سره) دتوبې سبب اودخدای پاکﷻ له طرف نه ورته غیبي رزق راتلل

حضرت حبیب عجمي قدس الله سره دادوخت لوی تجار اولوی سودخور ؤ دومره دسود معامله یې وه چې دهربیګاه خوراک به یې دسود له شیانونه پوره کاوه حتی لرګي به یې هم دیوچانه په سود راوړل.

یووخت کې حسن بصري رحمہ اللہ ناست ده وعظ اونصیحت کوي ،دی هم په هغه مجلس کې کیناست نوچې کله کیناست د حسن بصري

ﷺ خبرو په ده باندې اثروکړ ،له خدای پاک ﷻ نه ډار ورسره پیداشوچې دګناه له وجې نه خوزمونږ اخرت تباکیږي نودځان سره یې فیصله وکړه چې نوربه زه دسود معامله نه کوم ،توبه یې ویسته اودتوبې نه بعد یې اعلان وکړ خلکو ته چې که دچاپه مادباندې څومره حق وي ماپه ناروا اوسود خوړلی وي راشئ چې خپل شیان بیرته درکړم ،خلک ورته راتلل ده خپله سرمایه بیرته وربانديې تقسیموله چې دومره اندازه شي دده په کورکې پاتې نشوچې هغوی ته یې ورکړي نویوخپل لنګ یې په غاړه کې پاتې شو اوددښځې چامه یې په غاړه کې پاتې شوه پس له دینه زیاتې مجبوره شو مزدوري یې شروع کړه ،چې مزدوري به کوم کورته به څه نفقه وربانديې پیداکوم خوچې دکورنه راووت بیادحسن بصري ﷫ دمجلس شوق ورسره پیداشو راغی دحسن بصري ﷫ په مجلس کې تربیګاه ناست ده ،بیګا کورته لاړهیڅ شي یې نه دی راوړی ښځې یې ورته وایې چې څه دي راوړل ؟ دی ورته وایې چې څه مې ندي راوړي صبا بیاداغسې بله ورځ بیادغسې اخرښځه ورته وایې چې توله ورځ ځي بیرته بیګاته تش راځي دلوږې نه مړه شو .

دی ورته وایې چې زه دیوداسې ذات مزدوري کوم چې ترې شرمیږم چې روپۍ ورنه واغواړم اوهغه ذ ات ډیر عزتمن ده هغه ډیرحلیم اوکریم ذات ده زما اجرت خوري نه ، ماته خپله بدله راکوي خونن یې راته وویل چې لسمه ورځ به زه بدله درکوم لس ورځې سهار راځي دحسن بصري ﷫ سره تربیګاپورې بیګاه

کورته خي چې کله لسمه ورځ شوه کورته چې راروان شو دحسن بصري صاحب دمجلس نه نوپه لارې خدای پاک ﷻ ته التماس کوي چې ای خدایه ! هغه وعده خوپوره شوه اوس به زه خپلې ښځې ته څهٔ وایم چې لس ورځې پوره شوې بدله ورنه ورم نوبیا به راته وایې چې په وعده کې درواغجن یې پدغه غم اوسوچ کې ده چې راغی کورته ګوري چې دکور نه دښه خوراک بوی پورته شو دیګ په نغري ایښی اوخوراک پکې پخیږي ،ښه مړې پخه شوې ده چې راغی وې ویل چې څهٔ دي ؟ ښځه ورته وایې چې هغه ذات چې تا یې دا لس ورځې مزدوري کړې وه هغه تن دخوراکوپه شیانوباندې اوښان بار راوړل دومره یې غله راوړه، دومره یې غوړي ،دومره یې ترکاري دپختن راوړله اودومره یې روپۍ راکړې اودایې وویل چې حبیب عجمي ته ووایې چې هغه دتاچښتن وایې چې ته دې په خپله مزدوري کې کوشش کوه زه به دې په بدله کې کوشش کوم اجرت به زیات درکوم.

داملائکې خدای پاک ﷻ مقرروي هغه شی یې دده کورته چې راوړل.

بیا هغه حضرت حبیب عجمي صاحب دومره په خدای پاک ﷻ ګران شو داسې لوی ولي خدای پاک ورنه جوړ کړ چې حسن بصري رحمه الله په لارې روان دی دماښام دلمانځه وخت شو جمات ته ورغی چې حضرت حبیب عجمي صاحب امامت کوي اوقرائت وایي ،ده سلام وګرځاوه اودجمات نه یې بهر خپل لمونځ وکړشپې حسن بصري رحمه الله رب تعالی په خوب ویني اوورته وایې چې ای رب تعالی

دنارضا به په څه کې وي؟ ته به په څه له مانه راضي کیږې؟
خداوندمتعال ﷻ ورته وایې چې که تادحبیب عجمي پسې لمونځ
کړی وای نوزه به درنه راضي وم ،دی ورته وایې چې هغه
خوعجمي ده تکې سم نشي ویلای خدای پاک ﷻ ورته وایې چې
که عجمي ده هم خوحبیب ده حبیب ، ته یې زړه ته ګوره چې دهغه
په زړه کې له ماسره څومره اخلاص ده، دهغه له ماسره څومره مینه
اومحبت ده.

خدای پاکﷻ دده دتوبې په برکت باندې د غیبي رزق بندوبست
کوي ځکه دقرانکریم فیصله ده ﴿ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّهُۥ مَخْرَجًا ۝ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ﴾ .چې څوک له خدای پاکﷻ نه وډارشي
خدای پاک ﷻ به دی دمشکلاتونه خلاص کړي اودهغه طرف نه به
ده ته درزق بندوبست وکړي چې دده به بالکل ګمان هم نوي .

نوغرض داده چې مونږ اوتاسې باید دغه ذکر ددغې یوې ورځې
دناستې ددغو عواقب وګورو چې پدغه مجلس بیا څۀ خدای پاک
ﷻ مرتب کوي کومه فایده مرتبه کیږي . لکه مخکې موهم
داذکرکړی و چې کله قیامت شي جنتیان جنت ته داخل شي دوی
ته دنورممبرونه اوکرسۍ کیښودل شي اوخوراکونه ورته کیښودل
شي دوی به دسخت حیرانتیاپه حال کې وي بیا به دخدای پاک ﷻ
له طرف نه په دوی باندې غیبي غږوشي چې نن خودحیرانتیا ورځ
نه ده دتاسې دنعمتواوانعاماتوورځ ده ولې داسې پریشانه یئ دغه
جنتیان به ووایې چې یوه وعده له مونږ سره رب تعالی ﷻ کړې وه

دهغې وعدې ورځ راغله که هغه زمونږ سره په ځای شي چې هغه دخدای پاک ﷻ ددیدار وه خداوندمتعال ﷻ ملائکوته ووایې چې دحجاب پردې پورته کړئ چې دغه بندګان زما دیدار وکړي داملایکې به ورته ووایې چې ای رب تعالی ﷻ څرنګه دوی دتادیدار وکړي په دی کې ګنهګار خلک هم ژ چې په دنیاکې یې ګناوې کړي دي هغه چیرې دتاددیدار لایق دي.
رب تعالی ﷻ به ورته ووایې چې که ګنهګارو خودوی زماذکر کاوه او ژړاکونکي ژ ،دذکر په حالت کې یې ژړاوې کړي نودوی زما له پاره ژړلي دي ،زمادرضا له پاره یې ژړاوي کړي دي دهغې ژړاوپه برکت مادوی ته ټولې ګناوې وربښلي دي ،پورته کړي پردې نوچې هغه پردې پورته شي دخداوندمتعال ﷻ داسې تجلي په جنتیانوباندې وشي چې دجنت په هیڅ نعمت کې دومره خوند نه وي لکه دخدای پاک ﷻ په دیدارکې حتی چې ترڅوپورې درب تعالی ﷻ دیداروي دغوجنتیانوته دجنت دحورودغلمانو دجنت دټولوانعاماتونه انسان غافله شي هغه ته بالکل سوچ اوفکر نکوي بیا رب تعالی ﷻ ورته وایې چې ای بندګانو ! له مانه راضي یئ دوی به ورته ووایې چې ولې نه ای خدایه ! کوم څه چې دې چې تا مونږ ته نه دي راکړي ؟ دجهنم نه دې بچ کړو ،جنت دې راکړ، دجنت انعامات دې راکړل ولې به نیو راضي .رب تعالی ﷻ ورته وایې چې زه بل زیادت دروکړم؟ دوی به ووایې چې نوربه څه رازیات کړي ؟ ای خداوندمتعاله ! دخداوندمتعال له طرف نه به اعلان وشي چې زه درنه راضي یم نورنه درنه خفه کیږم په دنیاکې

خوکله نیک عملي کوي خوداخوف اووېره ورسره وي چې خاتمه بې خرابه نشي بیرته خدای پاک ﷻ ورنه ناراضه شي لکن هلته خداوندمتعال ﷻ اعلان کوي چې زه درنه راضي یم نورنه درنه خفه کیږم. ﴿ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ ﴾ له رضا دخدای پاک ﷻ نه هیڅ عبادت لوی نده که جنت ده هم دخدای پاک ﷻ درضایوه نتیجه اوثمره ده نوکه سړی په یوه مجلس کې دخدای پاک ﷻ درضا له پاره وژاړي اودخدای پاک ﷻ ذکرپه اخلاص باندې وکړي اوخدای پاک ﷻ یې قبول کړي اوترې راضي شي ددغه بدله به بیاهتله په جنت کې سړيویني بیا به ددغه مجلس نتیجه هلته ویني چې هلته خدای پاک ﷻ خپل دیدار پدغه ژړا باندې مرتب کوي چې زما له پاره یې ژړل دخپلو ګناهونو نه یې توبه ایسته دذکر په حالاتو کې یې ژړاوې کولې نوزما دیدار دوی ته روا ده تاسې پردې پورته کړئ چې زما دیدار وکړي.

الحمد لله مونږ په ذکر لګیایو اوداسې خلک په دا اوس - اوس حالت کې شته چې په سینما کې به ناست وي اوپه شرابوبه لګیاوي، په ګناهونوبه لګیاوي چې څوک داسې دفتنوپه دورکې دخدای پاک ﷻ په کور کې په ذکرلګیاوي په حدیث شریف کې راغي چې خداوندمتعال ﷻ وایې چې زما زیارت کونکي زما ملاقات کونکی هغه څوک دي چې زما جومات ته راځي ،خدای پاک ﷻ وایې چې دازما میلمانه دي اوخدای پاک ﷻ وایې چې دکورپه چښتن دالازمه ده چې دخپلو میلمنوقدروکړي ؛نوخدای

چې تاسې زما میلمانه یئ زه دتاسې قدرکوم پاک ﷻ وعده کوي چې درب تعالی ﷻ کورته ورغلي چې سړی دېته فکر وکړي چې اوسخې ذات میلمه شوې اودده درسره وعده ده چې اودهغه کریم زه به دخپل میلمه عزت کوم بیا به په دغه مجلس باندې څومره دخداوندمتعال ﷻ رضا مرتبه کیږي بیابه کوم کوم انعامات په دغه مجلس باندې مرتب کیږي.

نویوملتې پنځه ملته څومره چې وي سړی دخدای پاک ﷻ نه غافله نوي دخدای پاک ﷻ درضا له پاره ناسته ولاړه ترک کړي نوبیا به ددغه نتیجه هلته په جنت کې معلومیږي دابه بیاهلته په اخرت کې معلومیږي چې خدای پاک ﷻ دغو خلکوته څومره مقام ورکړی.

نوزموږ اوتاسې داوخت ډېر قیمتي وخت ده ،دډېرقمیتي وخت قیمت باید سړی وپیژني داوخت که پالتوتیرشي نوډېره لویه سزا به بیاوي ،که داوخت په سم چوکاټ کې تیرشي نوبیا ډیرلوی انعامات دي چې دخدای پاک له طرف نه ورکول کیږي.

وآخردعوانا ان الحمدلله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمدوعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

# (٤١) مجلس

## دوخت اهتمام دخدای پاکﷻ د نزدېکت سبب ګرځي

ددې له پاره چې سړی خپل اوقات ضائع نکړي دشریعت موافق زندګي مختاره کړي داانسان مخکې تردې چې دشریعت پابند نه وي نودغه انسان په یونوم سره یادیږي اوبیاچې دشریعت پابندي شروع کړي بیادغه انسان په بل نامه نامداره کیږي.

صحابه کرام ؓ مخکې داسلام تر راوړلودحضرت نبي کریم ﷺ ترمتابعت نه مخکې هغوی ته دجاهلیت لقب ورکول کیدو، کافرومشرک اوجاهل ورته ویل کیدل لکن کله چې په اسلام باندې مشرف شول دحضرت نبي کریم ﷺ لارېي خپله کړه دهغه ارشاداتومبارکوته یې غاړه کیښودله چې هریوه ته یې داسې کرامات ورپه برخه کړل چې دانسان دعقل نه وتلي شیان دي.

حضرت ابوبکرصدیق ؓ ماخوستن خپل کورته درې نفره میلمانه بوتلل اوبیادی لاړ دحضرت نبي کریم ﷺ ځای ته ډېروخت بعدچې دی دهغې زمکې نه راغی نودده بي بي مبارکه ورته وایې چې ددغومیلمنونه ته څۀ شي بندکړي ولي نه راتلي؟ چې هغوی ډوډۍ خوړلي وای. حضرت صدیق اکبرؓ ورته وایې چې ولي تراوسه تالاډوډۍ نه ده ورکړي؟ بي بي مبارکه ورته وایې چې ماډوډۍ

ورکوله خودوی انکاروکړچې ترڅو صدیق اکبرﷺنوي راغلی مونږترهغه خوراک نه کوو.

حضرت صدیق اکبرﷺ بي بي مبارکي ته حکم کوي چې په یوه وړه کاسه کې ډوډۍ راتیاره کړه کله یې چې داډوډۍ راواخیسته اودمیلمنومخې ته یې کیښودله حضرت صدیق اکبرﷺ ورته حکم کوي چې ماخوړلي ده تاسې یې وخورئ دادرې نفره میلمانه چې هره ګوله رااخلي دګولې لاندې ترهغه نه زیاته ډوډۍ نوره راپیدا کیږي تردې پورې چې دادرې نفره میلمانه ماړه شول.

حضرت صدیق اکبرﷺ خپلې بي بي ته وایې چې ته څه خیال کوي چې داډوډۍ څرنګه ده هغه ورته وایې چې والله ترمخکې نه اوس زیاته ده بیاپه کورکې چې څومره ؤ هغوټولو دامړه، وخوړله دهغه نه بعدیې حضرت رسول الله ﷺ ته ورولیږله، دحضرت نبي کریم ﷺ په کورکې داډوډۍ ایښې ده وایې چې دیوقوم سره زمونږ معاهده وه دهغه قوم سره سهارزمونږمعاهده ماته شوه خلک ټول سره تیت پرک شول دولس نفره دلته دحضرت نبي کریم ﷺ کورته راغلل اوهغه ډوډۍ یې وخوړله اوټول ورباندې ماړه شول.

دعقل په تقاضا خودې ډوډۍ ددریونفروکفایت هم نه کاوه څکه دېرکم شي ولکن حضرت صدیق اکبرﷺ ته خداوندمتعال ﷻ دامنقبت ورنصیب کړ چې دده په برکت رب تعالی ﷻ په هغه کاسه کې غیبي رزق زیاتولو.

## دحضرت صديق اکبرﷺ کرامت

امام رازي په تفسير کبيرکې دسورت کهف په واقعاتوکې فرمايي چې کله دصديق اکبرﷺجنازه صحابه کرامو واخيسته حجري مبارکې دحضرت نبي کريم ﷺ ته چې دوی راغلل دحضرت صديق اکبرﷺ جنازه يې په غاړه ده نووايې السلام عليك يارسول الله ! هذا ابوبكر ﴾ يعنې سلام دې وي په تاای دالله رسوله دغه حضرت ابوبکرﷺ مونږ راوړ .ددوی ددغو الفاظوپه ويلوسره خودبخود حضرت نبي کريم ﷺ دحجري مبارکې دروازه ورته خلاصه شوه اوغيبي غږ حاضرينو ټولو واوريده چې غيبي يوهاتفي غږوشو: ادخلوالحبيب الى الحبيب ﴾ داخل کړئ دوست خپل دوست ته . صديق اکبرﷺ دحضرت رسول الله ﷺ دوست ؤ دهغه عاشق اومحب ؤ په روايت کې راځي چې يووخت په مسجدنبوي کې حضرت نبي کريم ﷺ صديق اکبرﷺ اوعمرفاروق ﷺ له لاسوځنه نيولی اووايې چې مونږبه په داسې کيفيت په ورځ دقيامت هم راپورته کيږو.

## دحضرت ابودرداء ﷺ کرامات

حضرت ابودرداء ﷺ په کټوپسې اوريانديې کړی ده څه شی پخوي حضرت سلمان فارسي ﷺ ورسره ناست ده چې ګوري دکټودننه څه اواز شروع شو اودا اواز په جوش شو دکنکی هلک داواز په

اندازه تسبیح شروع شوه لکه یوکنکی هلک چې په داکټوکې ناست وي.

اوله ډیره جوشه داکټونیغه نیغه وغورځیده لکه جذب چې انسان ته پیداکیږي چې کله په قرارشوه حضرت سلمان فارسي ﷺ حضرت ابودرداء ﷺ ته وایې یا ابادرداء وګوره داځۀ نادره پیښۀ شوه ،کټواوپه هغه کې اواز اوشو اوهیڅ شی ورنه تویه نشول

حضرت ابودرداء ﷺورته وایې چې په تادې خدای پاک ﷻ رحم وکړي که تاغږنه وای کړی نورکرامات به دې هم پکې لیدلی وای بیاچې کله ډوډۍ په کاسه کې اچوي خوراک شروع کوي دغه کاسه هم په تسبیح لګیاکیږي اوهغه طعام چې کوم په کاسه کې ده هغه هم په تسبیح شروع کوي اوخدای پاک ﷻ ذکرکوي.

کاسه لرګی ده،جماد دی خوتسبیحات وایي اودوی یي اوري ،ډوډۍ په اوریوخ شوی شی ده خوتسبیح وایي اودوی یي اوري.

همدارنګه حضرت نبي کریم ﷺ به چې ډوډۍ پورته کوله دده په لاس مبارک کې به یې تسبیح ویله ،هغه پسه چې په خیبرکې حضرت رسول اللهﷺ ته پوخ شوی اوزهرورولیدلې ؤ هغه پوخ پسه دحضرت رسول الله ﷺ په خوله کې اواز کوي چې مامه خوره په ماکې زهرګډشوې دي.

داحضرت ابودرداء ﷺ یوصحابي ده دکوم شي چې دده سره تعلق راځي چې کتوه ده هغه هم په تسبیح راځي ،هغه کاسه هم تسبیح وایې هغه ډوډۍ هم تسبیح وایي.

## دحضرت حمزه ﷺ له شهادت نه وروسته کرامات

دحضرت حمزه ﷺ قبرته یوڅوک ورغلل سلام اچوي چې السلام علیکم ، دقبرنه په لوړاواز سره ورته غږ کیږي چې وعلیکم السلام ،په قبرکې دی شهیدده لکن په دومره اواز باندې چې سړي یې په غوږو اوري بیرته جواب ورکوي . دحضرت حمزه ﷺ په څنګ کې یې واړول اوبیایې یونفرپیرې ته مقررکړاوپاتې نورویده شول دایودچوکیداري په انتظارناست ده چې څوک دښمن حمله ونکړي دا ناست صحابي وایې چې ګورم یوسړی په آس سپور ده چې داڅومره ملګري چې زمونږ پراته دي ددغوداسې ګرد راتاویږي وایې یو وار دسوستیاله وجې نه کیناستم چې څه یې کوې؟ بیامې وویل چې کله ورجګ شوم اوورنږدې شوم غږمې وریاندې وکړ چې ته څوک یې هغه راته ویل چې یووار زمونږ سره واړه وئ اوبیا مونږه خفه کوي چوکیداري په خپله کوئ زه حمزه بن عبدالمطلب یم چې تاسې زماپه څنګ کې پراته یي زه به دتاسې چوکیداري کوم موږ به نورنه څوروئ، بې خوبي به تاسې نه کوئ ،تاسې به ویده کیږئ

اسدالغابه لیکي چې یوڅوک ورته سلام اچوي، دی ورته دقبرنه جواب ورکوي اودجواب نه بعد ورته وایې چې دتازوی به پیداکیږي اوپه هغه باندې بۀ حمزه نوم ږدې خپل نوم وربښیي،دده دحمل بشارت ورکوي چې هم بچی ده اونرده ،دا انسان ته

داکرامت دخهٔ په وجې پیدا وه؟ داددغه وجې نه چې دوی اوقات نه ضائع کول ،ددین اودشریعت پابند ؤ،داسې یونه په زرگونو واقعات دي،قرانکریم ډک دی په کراماتو باندې.

حضرت بي بي مریم یوه ښځه وه په قرانکریم کې ددې کرامات بیانیږي دحضرت ذکریا علیه السلام نه بغیربل څوک ورننه وتل هم نه، په ژمي کې یې دوړې میوې لیدې ،په اوړې کې یې دژمي میوې ورسره لیدل کیدې ،داکرامات په قرانکریم سره ثابت دي.

## دنیکوخلکو په ملگرتیا سپی هم جنت ته داخلیږي

اصحاب کهف درې سوه نه (۳۰۹) کاله په یو غارکې پراته انسانان ، خوددین په بنیاد باندې خدای پاک ﷻ دومره شرافت ورکړی ؤ چې په دومره ډېروخت کې نه ددوی وجودونه خوړینیږي،نه ورستیږي اونه چنجي کوي، حتی دسبزي پانوپه شان په یوطرف اوبل طرف باندې اوړي، دا احترام خدای پاک ﷻ دغوانسانانو ته په څهٔ پیداکړی ؤ خوددغه دین په خاطریي پیداکړی ؤ دا خوځه کوي چې خپله اصحاب کهف خومسلمانان ؤ،ددین په حمایت کې دومره عزتمند کړل هغه سپی چې ددوی سره ملگری شو هغه ته هم خدای پاک ﷻ هغه مقام نصیب کړلکه چې ددوی وجودنه چې (۳۰۹)کاله نه خراب کیدل ویده و،هغه سپی یې هم ﴿ وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ ﴾ قرانکریم دهغه سپی کرامت بیانوي چې هغه سپی چې ددوی په څنګ کې پروت ده هغه خدای پاک ﷻ دومره

عزتمندوګرځاوه چې دنیکوخلکوپه ملګرتیااوجوار باندې خدای پاک ﷻ بیاپه سپي کې هم کرامت پیداکوي.

سگ اصحاب کهف روز چند
پی نیکان گرفت مردم شد

وایې داصحاب کهف سپی یوځوورځې دمسلمانانو دښوخلکولمن ونیوله دانسانانوپه جمله کې شمار شو،په قیامت کې به هغه هم دیوانسان په شکل خدای پاک ﷻ هغه جنت ته داخلوي.

دخداوندمتعال په خزانوکې څۀ کمبوت نشته هسې جنت ته یوه بهانه غواړي ،یوه ته خداوندمتعال توفیق دنیکي ورکړي ،بل ته نفس په محبت اوتعلق هلته په قیامت کې ورسره یوځای کوي ،سپی ورسره یوځای کوي،نوانسان چې دنیک انسان سره تعلق لري بیابه په انسان کې دغه شرافت نه پیداکیږي.

غرض داده چې که مونږ اوتاسې داخپل اوقات ضائع نکړو ددغواوقاتوقدرپه دنیاکې معلومیږي اخرت خوڅۀ کوې، یقین ده چې سړی دادخپل ځای نه مسافرشي بل ځای ته لاړشي بیامعلومات ورته کیږي چې هغه طالبان ،هغه ملګري هغه حلقې دذکرچې مونږ یوپنځه میلته یالس میلته دخداوندمتعال ﷻ په ذکرسره یوځای کیدواوس هغه څوک نه پیداکیږي چې زه ورسره ختم وکړم ،یاورسره دخیرخبرې وکړم دېرداسې مشائخ کرام دي چې دداسې مجلسوپه ارمان دي اوزه درته قسم کوم چې هروار زه

ددغه ځای نه په سفرتللی یم چې ددنیاداحترام په وجه ښه احترامونه راته موجود وي ،ښه خوراکونه راته موجود وي خولکن هغه خوندچې پدغه مجلس کې پیداکیږي ،دملګروپه مجمع کې پیداکیږي هغه بیاماهلته په پلاونواوچرګانوکې نه ده لیدلی ،دادخدای پاک ﷻ په دین کې عشق ده ،محبت ده پدغه کې خداوندمتعال ﷻ ځکه دغه کرامت پیداکړی چې هلته انسان ته سکون پیداکیږي.

## له مرګ نه وروسته د حضرت نورالمشائخ قدس سره کرامت

مولوي صاحب جازب چې په بنوکې دټانچۍ بازاردجومات امام ده قصه یې راته کوله چې دنور المشائخ صاحب په وخت کې دده مرید ده ،دهغه مرید عالم وظائف خلاص ؤ په خپل کارېسې یې ولیږه ارغنداب ته اوچې له هغه خوانه راوګرځي بیا به دتادخلافت دستاربندي کوم کله چې هغه لاړ دپښوسفرونه ؤ بیرته چې بیاراغی نوشل شپې تیرې شوې وي چې حضرت نورالمشائخ صاحب وفات شوی و،دی راغی اوقبر ته یې کیناست اوپه مراقبه کې ژاړي چې تاخوماته ویل چې ته راوګرځي زه به دتادستاربندي کوم اوس ته لاړې زه پاتې شوم . نودحضرت له قبر مبارک نه لاس راووت یوه چوپانه ،یوه خولۍ اویوپټکی دادرې سره یې ورکړل ،حضرت ضیاء المشائخ صاحب وایي چې دکورنه په تیزي راغی

دی چې دزیارت نه ورووت هغه تبسم کوي ورته وایې چې دریې
کړل وایې هو ! بیا یې په هغوی باندې دستاربندي وړته وکړه .

## حضرت نبي کریم ﷺ د کوچي له پاره په قبرکې مغفرت غواړي

داداستبعاد خبره نده حضرت رسول الله ﷺ ته خدای پاک ﷻ فرمایي چې څوک ګناه وکړي بیاتاته راشي ته ورته مغفرت وغواړي خدای پاک ﷻ به هغوته مغفرت وکړي. جلالین شریف واقعه رانقل کړی چې یواعرابي ده څه ګناه ورنه شوې راروان ده چې هلته زه ورشم دده په حضورکې چې دی خدای پاک ﷻ ته وسیله وګرځوم چې دی هم زما له پاره د خدای پاک ﷻ نه دعاوکړي خدای پاک ﷻ مې مغفرت نصیب کړي چې دی راته حضرت رسول الله ﷺ ددنیانه منتقل شوی نوبیا دده دقبر په څنګ کې ودریده اوورته وایې چې په تاباندې خدای پاک کلام نازل کړی په هغه کلام کې دا آیتونه دي چې څوک ګناه وکړي ته مغفرت ورته وغواړي نوزه به هغه وبښم زه خوتاته راغلی یم اوته نه یې چې ماته مغفرت وغواړي نوزه تاته وایم یارسول الله ﷺ چې ته ماته په قبرکې مغفرت وغواړه اوکه دتامغفرت غوښتنه زما له پاره قبوله وي ماته دې خدای پاک ﷻ پدغه ځای مرګ راکړي پدغه ځای باندې ولویده اووفات شو.

داهرانسان چې خداوندمتعال ﷻ ته عزتمند کیږي دخدای پاک ﷻ په دین پاندې عزتمندکیږي که نه وي بذات پیغمبرهم یوانسان ده،صحابه هم انسانان دي ،ولي هم یوانسان ده لکن داسې انسانان دي چې څوک خدای پاک ﷻ ته بیاګران شي دهغه چې بیا څوک مخالفت کوي خدای پاک ﷻ اعلان دجنګ ورسره کوي، :د بخاري شریف حدیث ده .حضرت نبي کریمﷺ له خدای پاکﷻ نه حکایت کوي ﴿ من عاد لی ولیاً فقداذنته بالحرب ﴾ خدای پاک ﷻفرمایي زمادولي سره چې څوک دښمني کوي له هغه سره زمادجنګ اعلان دی . دا انسانان په خدای پاک ﷻ بیا دومره ګران دي.

## دحضرت خالدبن ولیدؓ کرامت

حضرت خالد بن ولیدؓ ته یوجاسوس راغي اوداسې دزهرو بوتل ورسره ده چې څرنګه یې سرې خولي ته کړي دستي یې وژني پدغه نیت یې را اخیستی که زه ګرفتارشوم دستي به یې خولې ته کړم اوتیروم به یې چې مسلمانان ماته تکلیف رانکړي .

حضرت خالدبن ولیدؓ هغه جاسوس ونیواودا دزهروبوتل یې ورنه واخیست ورته وې ویل چې داڅهٔ دي ؟ هغه ورته وویل چې دا (سم عاء) داداسې زهر دي چې سړی یې غړف کړي دستي مړ کیږي حضرت خالدبن ولید ؓ ورته وایې بسم الله الرحمن الرحیم دزهرو بوتل یې ټول په سرباندې واړو هیڅ هم ونشول اوهغه جاسوس یې خوشې کړ خپل قوم ته بیرته چې لاړ اوورته وایې چې ګورئ په

اسلام مشرف شي چې والله دايوداسې قوم ده چې خدای پاک ﷻ دومره عزت ورکړی چې هغه زهرهم په دوی باندې اثرنکوي څکه دغه خالدبن ولید ﷺ دخدای پاک ﷻ ددوستانو له جملې نه ده.

الله تعالی ﷻ يې حفاظت کوي داسې مقامات چې خداوندمتعال ﷻ انسان ته په دين ورکوي خوچې څومره زيات کوشش کوي سړې دغومره هغه انسان خداوندمتعال ﷻ ته ډېرنږدې کيږي، خداوند متعال ﷻ بيا دغه انسان ته ددنياعزت چې کرامت ورته ويل کيږي هم ورنصيب کوي اوداخرت عزت هم ورنصيب کوي.

مونږبه کرامت نه غواړو په دې نيت کوشش په طاعت اوعبادت کې نه کوو چې زمانه دې يوڅه کرامت ښکاره شي څکه کتاب ليکي: كن طالب الاستقامة ولاتكن طالب الكرامة فان ربك يطلب منك الاستقامة ونفسك يطلب منك الكرامة.

يعني داستقامت طلبګار اوسيږه چې په دين ځان برابروه، کرامت مه غواړه خدای پاک ﷻ له انسان څخه په دين استقامت غواړي اوشيطان ورنه کرامت غواړي. څکه چې په کرامت کې دځان برخه وي بيا به نفس غټ ورته ښکاره کيږي.

نودا اوقات ډېرقيمتي دي بيا په ژوندون کې داسې افسوس پدغه حالت را روان ده نويوورځ چې سړي ته موقع پيداکيږي بايدهغه يوورځ غنيمت وشمېري اووخت ضائع نه کړي.

نوپه هرځای کې به سړی دعبادت کوشش کوي اودنيکو خلکودپيداکيدلوکوشش به کوي اوخدای پاک ﷻ ته په زارئ اوعاجزي کوي چې څوک خدای پاک ﷻته مقبول وي بيا به يې

خدای پاک ﷻ په نااشناکې اشناګرځوې. او که خداوندمتعال ﷻ ته څوک مقبول نه وي بیابه په خپل کورکې منفور وي خپل پلاراومور به ځینې بیزاره وي ،بنیراه به ورته کوي خپل قریب به ورنه بیزاره وي، بنیرابه ورته کوي، او الله تعالی ﷻ ته چې څوک مقبول شوبیابه پردې خلک چې نه یې قوم وي نه خپل دعاورته کوي.

## دحضرت اسماعیل جان اغا صاحب کرامت

مولویصاحب جاذب ویل چې په لاهورکې اوسیدم دحضرت صاحب یو ورور خواجه محمد عثمان صاحب په لاهورکې وفات شوی ده.

دی وایې چې حضرت محمد اسماعیل جان آغاصاحب راغلی ؤ دجومات له چت نه راکوزیده دده دمخ نه چې انوار پورته کیدل خلکوبې له دینه چې چانه پیژانده وایې چېغې یې وهلي دغسې دده په پښوکې رغړیدل نه یې پیژانده اونه یې دعلاقې و.

په یو کتاب کې مې دیوعالم واقعه لیدله چې دی به کله جومات ته راغی دده له مخ نه به داسې تجلیات اوانوار پورته کیدل چې په شپه کې به دده دمخ رڼاته کتاب کتل کیده.

دحضرت رسول الله ﷺ په واقعه کې راځې چې حضرت ام المؤمنین وایې چې زمانه ستن ولویدله اوحضرت رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې څۀ شی درنه ولویده؟ ماورته وویل چې ستن رانه ولویده حضرت رسول الله ﷺ تبسم وکړ،دده له غاښونو مبارکو

دومره رناپورته شوه چې ماستن پیداهم کړه اوتار مې هم پکې واچاوه.

داکمالات چې په اولیاء کرامو کې پیداکیږي داتولې معجزې درسول الله ﷺ د دهغه دمتابعت نتیجه ده، دهغه متابعت له وجې خدای پاک ﷻ سړی ته دغه مقام پیداکوي.

نوکوشش باید داوکړو چې داحالات ترک نکړو ډېر دوظیفو ملګري چې دداسې ماحول نه چې هلته دذکرحلقې وي چې دهغونه جداشي نوبیا اکثره سستیا پکې پیداکیږي وظیفې ترک شي.

دامونږ چې کله چېرې لاړشو هلته ډېر داسې خلک وینو چې دوظیفوډېر سبقونه یې حاصل کړي وي لکن چې دسبق پوښتنه ورنه کوي چې نفي اواثبات په کومه طریقه کیږي یایې طریقه ورنه هیره وي ترجمه یې ورنه هیره وي ځکه خوغفلت وي هلته خویې زیاتې داخیال وي چې څوک شته نه چې وعظ اونصیحت حلقه دذکروي سوستیا کوي هرڅه ورنه پاتې وي.

مونږ خو په هغه خلکوپورې ترلې که هغه ځ نوذکریه کوو اوکه نه نه به یې کوو ذکرخودالله تعالی ﷻ ده هغه په هروخت کې ده.

حضرت رسول الله ﷺ چې ددنیانه منتقل شودده اواز چې پورته شو په صحابه ؤ باندې داسې غم راغی دحضرت عمر ﷺ عقل کارېرې نبود. دحضرت عثمان ﷺ پښوکارپریښود شل شو، حضرت علي کرم الله وجهه په ژبه ګونګ شو څه یې ویلې نه شوای اوډېرصحابه کرام ﷺ داسې شول چې لیونیان شول لکن صدیق اکبرﷺ پورته کیږي خطبه وایي چې چادحضرت رسول الله ﷺ له پاره عبادت

کاوه هغه مرشو خوکه چادخدای پاک ﷻ له پاره عبادت کاوه نو هغه ژوندی دی هغه نه مرکیږي.

نومونږ خودیوچاله پاره داذکرنه کوو ،دیوچا له پاره خوداعبادت نه کوو دالله تعالی ﷻ له پاره یې کوو هغه په هرځای کې زمونږ په ذکرخبرده ثواب به راکوي علم وربانديې لري تریوه ځایه پورې بایدخبره خاص نشې تعلقات باید قطعه نشې چې دسړي وس رسیږي دنیکو خلکو سره که په ورځ کې سړی لیدلی شي باید په ورځ کې یې ووینې اوکه په ورځ کې نه ؤ نوپه جمعه کې ،که په جمعه نوي نوپه میاشت ، دریومیاشتوکې دځپل وس سره موافق باید تعلقات قطعه نکړو.

په قرانکریم کې راځي ﴿ فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ﴾ مایادوئ زه به تاسې یادوم.

دلته مفسرین لیکي چې که څوک الله تعالی ﷻ نه یادوي بیا الله تعالی هم دغه سړی نه یادوي الله هم پدغه سړي باندې رحمت نه کوي ،څوک چې رسول الله ﷺ یادوي هغه دې یادوي څوک چې ولې یادوي تګ اوراتګ کوي،کتابونه یې ګوريځ هغه دې یادوي.

زه سراج المشائخ احمد ضیاء خلیفه صاحب ته ورغلی وم بیا ده دادپنج کتاب په حاشیوکې اشعار راځي نوهلته یوه پوښتو مصرعې یې وویله چې:

که راته ګوري درته ګورم - که راته نه ګوري پروا دې نه لرمه

ه خدای تعالی ﷻ ته څوک ګوري نو الله تعالی ﷻ هم ورته ګوري
رسول الله ﷺ او اولیا ؤته چې څوک ګوري هغه ورته هم ګوري
وکه نه ورته ګوري بیا یې پروا نلري.
چې مونږ خپله لارهغه خپل عشق ترک نکړو بیا که ددنیا په
هرسرکې یو ددوی به مونږ ته فایدې رسیږي او که زمونږ له طرف نه
تګ اوراتګ که زمونږ له طرف نه صحبت قطعه شو کمزوری شوه
بیا به دهغه طرف نه هم هغه فیوضات چې مونږ ته راځي هغه به
کمزوری کیږي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین
وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا
محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

الله

که خدای تعالی ﷻ ته خوک گوري نو الله تعالی ﷻ هم ورته گوري رسول الله ﷺ اواولیا ؤته چې څوک گوري هغه ورته هم گوري اوکه نه ورته گوري بیا یې پروا نلري.
چې مونږ خپله لارهغه خپل عشق ترک نکړو بیا که ددنیا په هرسرکې یو ددوی به مونږ ته فایدې رسیږي اوکه زمونږ له طرف نه تګ اوراتګ که زمونږ له طرف نه صحبت قطعه شو کمزوری شوه بیا به دهغه طرف نه هم هغه فیوضات چې مونږ ته راځي هغه به کمزوری کیږي.

**وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمین**
**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا**
**محمدوعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین**

الله

# (٤٢) مجلس

## د نعمت دبقا سبب شکرانه او د زوال ناشکري ده

کوم نعمت چې خدای پاک ﷻ چاته په برخه کړی وي ترڅو چې هغه خلک ناشکري ونکړي ، خدای پاک ﷻ هغه نعمت نه ورنه اخلي . اویو وار چې کوم نعمت خدای پاک ﷻ له چانه واخلي بیرته یې بیا ترهغه نه ورکوي چې ترڅو یې په اخلاص توبه نوي ایستلې ، دخدای پاک ﷻ انعامات ډېر زیات دي ؛ خوکه د نعمت ناشکري وشوه، دهغه سره داتکلیف پیداکیږي چې سړی به دهغه څخه محرومیږي ،بیا بیرته چې څوک دهغه مخکني نعمت تمنا ( ارزو ) کوي نوهغه به بیا هلته ورکول کیږي چې دخپلو ګناهونو څخه په اخلاص توبه ګار شي ،بیا خدای پاک ﷻ بیرته هغه رحمت اونعمتونه پدغه بنده کوي لکه ددي له پاره څو واقعات بیانه وو:

## دحضرت یونس ﷺ په قوم راغلی عذاب بیرته پورته شو

دحضرت یونس علیه السلام قوم دپیغمبر خلاف کار کاوه حضرت یونس علیه السلام دډېرې زړه تنګي نه چې ددوی نه ډېر تنګ شو خبره یې نه منله اراده یې دهجرت وکړه مخکې تردینه چې حکم الهي دهجرت وي دی دډیرې زړه تنګي نه روان شو له دوی نه

په کشتۍ کې سپور شو هغه کشتۍ ددریاب په مابین کې ودریده ،دکشتۍ بان وویل چې ددې کشتۍ عادت داده چې کله هم یو غلام دخپل څښتن نه تښتیدلی وي اوپدغه کشتۍ کې سپور شي داکشتۍ بیا خپل حرکت پرېږدي.

نومعلومېږي چې پدغو خلکو کې یو غلام دخپل څښتن باداره تښتیدلی ده نوداسبب دهلاکت دټولوخلکو ګرځي چې ترڅو پورې دغه غلام دکشۍ نه نوي لرې شوی ترهغه وخته پورې داکشۍ نجات نه پیداکوي.

حضرت یونس علیه السلام پوه شوچې زه یې له حکم دالله تعالی ﷻ نه راغلی یم نو ویې ویل چې هغه غلام زه یم چې تښتیدلی یم خوچونکې دی پیغمبر وو دده هغه نیک صورت ته چې خلکو کتل نودایې زړه ته هم نه لویدله چې دی دې غلام وي اودخپل څښتن له اجازې پرته دې تښتیدلی وي.

تردې پورې چې دوی قرعه اندازي (پچه اچول) وکړه ،درې وارې دحضرت یونس علیه السلام وخوت پس له هغه درې وارې نوم ختلو نه ،ده دریاب ته ټوپ کړل ددې له پاره چې هغه نور دکشتۍ خلک له هلاکت نه بچ شي ،ماهی خوله راپورته کړه حضرت یونس علیه السلام یې تیرکړ.

انبیاء علیهم الصلوة والسلام له ګناهونوڅخه پاک اومعصوم دي ؛خوحسنات الابرار سیئات المقربین ، دهغه زلات ـ خطا یعنې په اجتهادي خطایي هم نیسي، کله چې حضرت یونس علیه السلام بې له اذن درب تعالی ﷻ نه وتلی وو ،اګرکه ده ګناه نه وه کړې.

خو خدای پاک ﷻ دستې عتاب ورته متوجې کړ؛ خو لکن دی پوه شوچې دازما نه تقصیر وشو نوبیرته یې خدای پاک ﷻ ته رجوع وکړه ،هلاک دې شم خوداسې نه چې دماله وجې نه نورخلک چې په کشتۍ کې راسره سپاره دي ،هلاک نه شي . خوچې کله دی هغه ماهي تیرکړ،ماهي ته خدای پاک ﷻ حکم وکړ چې ستاخیته دده له پاره مابند یخانه گرځولې ده .

ماهي ته خدای پاک ﷻ حکم وکړ چې گوره ! حضرت یونس علیه السلام دتا دخوراک له پاره نه دی ،چې هضم یې نه کړې ،خوراک یې نکړې، تردې دریو شپو پورې کم -زیات هلته دماهي په خیټه کې محفوظ و اوبیا یې دماهي په خیټه کې دننه تسبیح شروع کړله اوپه خپل عجز باندې ورته قائل شو اودخپلې خطایې نه یې توبه وښکله اوداکلمات یې وویل :﴿ لَّآ إِلَـٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبۡحَـٰنَكَ إِنِّى كُنتُ مِنَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾

حضرت یونس علیه السلام چې دخدای پاک ﷻ له اجازې پرته روان شو اوبیا بیرته خدای پاک ﷻ ته راجع شو نو خدای پاک ﷻ په دریاب کې دماهي په خیټه کې محفوظ کړ. هغه ماهي بیرته ددریاب غاړې ته راواچاوه اودکدو ونه پرې شنه شوه اودده په لویو لویو پاڼو یې له گرمې نه وساته .

خو بل طرف ته هغه باغي قوم چې ددوی له لاسه هجرت ته مجبور شوی و،کله یې چې عذاب ولیده چې راتلونکی دی نوماشومان اولویان اونورتول حیوانات اوددی بچي یې دښتې ته

راتول کړل تردې پورې چې میږې اووري یې سره جدا کړل ،غواوې اوبچیان یې سره جدا کړل ، ښځې اوبچیان یې سره جدا کړل اوغټوخلکو له خپلو ګناهونوله وجې په توبه ایستلو شروع وکړه اوخدای پاک ﷻ ته په ژړا شول او وړو ماشومانو له مېندو څخه دجدا والي نه په ژړا شروع وکړه اونورواړه حیوانات له خپلو مېندو څخه دجدا په سبب چغې وهې داسې ژاړګانې اوفضا جوړه شوه چې درب تعالی ﷻ رحمت بیرته ورته متوجې شو اوهغه راتلونکی عذاب یې بیرته وګرځاوه.

حضرت یونس علیه السلام یې دماهي له خیټې نه خلاص کړ اوقوم یې د رالیږل شوې عذاب نه ،ددوی دتوبې په برکت ،خلاص کړل اوبیرته یې خپل رحمت پرې نازل کړ.

## دیوسنت پرېښودل دشکست سبب کېدل

دحضرت نبي کریم ﷺ په وخت کې مجاهدینو په یوجهادکې شکست وخوړ اوډېر تکلیف سره مخامخ شول ،بیا چې کله ګوښه شول نوپه خپل مابین کې یې وویل چې داڅهٔ وجه ده چې دخدای پاک ﷻ وعده ده چې زه به له مسلمانانو سره کومک کوم ،نصرت به یې کوم او مونږ نن شکست ولي وخوړ ، صحابه کرامو ﷺ چې سوچ وکړ نو ویې ویل چې زمونږ اوتاسې نه په دې سفرکې یومسنون (مسواک وهل ) عمل پاته شوی دی ؛نوټولو په یوځای توبه ویستله اوویې ویل چې راځئ داعمل (مسواک وهل ) شروع

کړو اودرسول الله ﷺ سنت ژاژوندی کړو چې خدای پاک ﷻ په موږ باندې رحم وکړي ؛نوټولو په یووار سره مسواک وهلو شروع وکړه ،هلته دکفارو جاسوس په دوی پسې راغی ،کله یې چې ددوی حالات ولیدل نوبیرته یې نوروکفاروته حال وروړ چې مسلمانان دومره په قهر شوي دي چې غاښونه یې تیره کړل اوس مو په غاښونو باندې خوري.

کله چې دوی دسنت دژوندي کولو په نیت مسواک وهل شروع کړل نوخدای پاک ﷻ دغه عمل ددوی دکامیابي سبب وګرځاوه ،دکفارو زړونو ته رعب ولویده اوشکست یې وخوړ اوپه شاه وتمبیدل.

هر وخت کله چې په کومو خلکو باندې تکلیف راغلی ،چې بیرته یې په اخلاص توبه ایستلې ده بیا خداوندمتعال ﷻ دهغوخلکو نصرت کړی.

داخبره بیا بیا مونږ کړې ده چې دغه د فراغت زندګي چې په آزاد طبیعت باندې لمونځ ،اودس ،روژه، سبقونه ،وعظ ،نصیحت او دخدای پاک ﷻ ذکراوبندګي کوو ؛که ددغه نعمت نه موږ غافله شو اوشکریه یې اداء نکړو ،کیدای شي چې ددغه په سبب په موږ باندې خداوندمتعال ﷻ تکلیف راولي.

که مونږ نورمسلمانان وروته دلته دراحت په زندګي کې دي خدای پاک ﷻ دهغو خپلو وعدو چې خدای پاک ﷻ کړي لکه دغه آیت کریمه ﴿ وَمَن يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً

﴿ دي چې څوک دخدای پاک ﷻ درضا له پاره هجرت وکړي ،په ځمکه کې به داستوګنې فراخه ځاي هم پیدا کړو چې خدای پاکﷻ به فراخه ځای ورنصیب کوي اوپه رزق کې به یې هم ازادي راولي له مهاجرینو سره دادخدای پاک ﷻ وعده ده ،رب تعالی ﷻهغه وعده ربښتونې کړې دي ،تاسو چې کوم مهاجر وغړوئ نووبه وایې چې په وطن کې زموږ دومره سرمایه اوزندګي نه وه لکه افغاني مهاجروته چې په پاکستان اونورو ملکوکې خداوندمتعال ﷻ ورکړي ،خدای پاک ﷻ په خپلو وعدوکې دروغجن نه دی چې دخدای پاکﷻ درضا له پاره یو واري چا هجرت وکړ نور غرضونه یې نوي نوبیا خدای پاک هغه وعده ورسره پوره کړې دی لکن چې اوس بیرته بیا تکلیف ورته متوجې کیږي دا وجه داده چې دادخپل نعمت شکرانه یې نه دی اداء کړې.

که چا میرانشاه پخوا لیدلی وي هغوی ته معلومه دی چې دلته پخوا مارکیټونه ، بلډنګونه اوتجارتونه ،نه وو، دامنطقې ټولې ځنګلونه اوخرابه وي . ماته سپین ږیرو ویل چې پخوا به مونږ تمبې راوړلې نوله دې منقطې څخه به دغلو له وجې په بدرګه تیریدلوځکه چې ټوله علاقه شاړه اوویرانه وه؛ خوتن ددغې منطقې په خلکو باندې خدای پاک ﷻ څومره وسعت اورحمت نازل کړی دی،داټول په دې وجه چې دې انصارو مهاجرینوته پناه ورکړه ،تکلیفونه یې ورسره وګالل، اوله انصارو سره دخدای پاک ﷻ وعده چې وسعت اوفراخي به پرې راولم اوس دومره آزادي راغلې

چې هریونن دملینوچښتن دی، دبلډنګوچښتن دی ، دموټرو چښتن شو.

خو لکن دغو اکثروته داغرور پیداشو چې دا زه یم ،ماکټلې، دابلډنګونه ماجوړ کړې ،په ماکې داکمال دی، داسې فکر ته نه ورتله چې ماددین یوه شعبه ژوندۍ کړه اومادیو مسلمان سره همدردي کوله،دهغه په برکت خدای پاک ﷻ په مادغه وسعت راوست.

یوسړې راته ویل چې اوس په دې منطقه کې ترکاري سمه نه پیداکیږي ،وچه مړۍ نه پیداکیږي ، یو ځای ته دتللو له پاره موټر نه پیداکیږي ، که داچاسره سامان وي دموټر له نیشتوالي له آمله خپل ځای ته نشي رسولی ،سبزي منډیې په تپه ولاړه ده، داچې کله نعمت زائل شي بیا خلکوته اندازه لګیږي چې دغه ازادي زمونږ خپل کمال و؟ اوکه دخدای پاک ﷻ نصرت اورحمت و.

نود واړه ډلې که داسې و چې بیرته خدای پاک ﷻ ته راجع شي نوزمونږ دایقین ده چې خدای پاک به ﷻ دخپلو وعدو موافق بیرته په دوی رحمتونه نازل کړي اوکه مونږ خپل جرم ونه پیژنو نوخپل ګناهونو ته متوجې نه شوبیا به دغه تکلیفونه ورځ – په ورځ نور هم زیاتیږي . په طالب پورې به مدرسه اور شي ،مدرسه به نه پیداکیږي . یوصوفي به داسې ځای نه شي پیداکولی چې په خپله خوښه هلته ذکر اوعبادت وکړي.

کله چې تحریک رنګ شو نوخلک به ماته راتلل چې دا دومره رش ولې جوړ وي؟ دامریدانو ته ووایه چې ډېردې نه راځي . اګرکه

دومره زیات هم نه و لکه دا اوس چې دي ،سره له دې چې موږ نه سیاسي خلک وو اونه چیرې دحکومت په مقابل کې جلوسونه ایستلي و، نه مو وعظ اونصیحت کړی و،هیڅ مونه و کړي خو په دې خلکو باندې ددې طالبانو وجود هم اور وو. دغه دنیکو خلکو دذکر حلقې هم اور ، بیا بیا به یې راته ویل چې دامدرسه یوڅه وخت بنده کړه چې طالبان اومریدان دلته نه راځي ؛خو چې خدای پاک ﷻ وسعت راوست نن نوپه ازاده توګه سره ژوند کوو لکن بیا که موږ نا شکري وکړو ،بیا به مو له عذاب اوتکلیف سره مخا مخ کوي.

له ډېرتکلیف څخه ،یقیني وایم چې په ځان نه وم پریشانه ؛خوداچې داملګري به تلل همیشه به پریشانې وه ،هرڅوک دعا ته راځي اوبیرته په ژړا باندې ځي ،داډېر تکلیف و ،زما خپل سکنی مأم دلته مشورې ته راغی چې دومره وس نه لرم چې په موټر کې کرایه ورکړم ،په وطن کې هم داسې حالات دي زړه مې نه غواړي چې لاړ شم ، له دغه کیمپ څخه د سختې مجبوري له وجې لاړ.

نو له دغو پریشانیو په وجه یقیني ،ددماغو اومعدې تکلیف راته پیداشو ؛خو خدانخواسته که موږ ناشکره شو تردغه به زیات تکلیفونه راته متوجې کیږي ،بیا به موږ له دېنه په سخت عذاب کې ګرفتارشو،له طالب اومرید څخه به ځان پټوو ، ځکه چې ددوی له وجې موږ ته نور تکلیف نشې جوړ،خدانخواسته بیا به داسې حال راځي.

نوهر یو چې پدغه خپل جرم قائل شو اودخدای پاک ﷻ طرف ته متوجې شو بیا خدای پاک ﷻ ډېر رحیم اوکریم ذات دی ، ډېر غیرتي ذات دی ، هغه بیا ددغه دین نصرت کوي ،دخپلو دوستانو نصرت کوي.

حضرت ابراهیم علیه السلام ته یې په اور کې دننه باغ جوړ ،ځلوینښت شپې په اور کې دننه و ،دمیوې کومه ونه چې پرې ولاړه وه ،هغې میوه وکړه ، نمردیانو په ده اور بل کړی و؛خو خدای پاک ﷻ په هغه اور کې ګلان ورته شنه کړل اودراحت ځای یې ورته جوړ کړ.

اصحاب الاخدود ته چې داور کندې جوړېدلې اودوی ورغورځول کیدل ،له غورځیدلو مخکې په جنت کې دوی خپل ځای ولید اوهغه اور چې دوی ته تیارشوی و دکفارو دهلاکت سبب وګرځاوه اوډېر کفار ددغه اور له وجې په اسلام باندې مشرف شول ، نو رب تعالی ﷻ هرڅه کولای شي ،دهغه په وس کې هرڅه شته، خوچې موږ خدای پاک ته راجع شو،تائب شو اودا دنعمت شکریه اداء کړو په دې باندې وپوهیږو چې زموږ سره چې دخدای پاک ﷻ رحمت شته ددغې وجې نه موږ دخدای پاک ﷻ بندګي کوو،که دابندګي نه وي ،لکه په مخکې وختو کې انسانان و چې دخدای پاک ﷻ بندګي یې پرېښودله نوبیزوګان اوخنزیران ورنه جوړ شول ، رب تعالی ﷻ چې انسان په خنزیر بدلولای شي ،انسان په بیزوګانو بدلولی شي نوهغه الله تعالی ﷻ په موږ هم

قادر دی ، موږ ته په دنیا کې عذاب نشې راکولای ؟ له موږ نه بیزو ګان نشې جوړولی ؟ نور عذابونه موږ ته نشې راکولی.

هغه الله تعالی ﷻ ده چې کله سپي داصحاب کهف ملګرتیا غوره کړه ؛نودانسان غوندې قیمتي حیوان یې ورنه جوړ کړ،هغه به جنت ته داخلوي دانسان غوندې کرامت دغه سپي ته ور په نصیب کوي.

نوغرض داده چې ترموږ نه په نیکو خلکو باندې ډېر تکلیفونه راغي ،په هغوی باندې زمکې تنګې شوې دي.

امام بخاري په واقعاتو کې راځي چې څولکه احادیث یې په یاد وو خوبیاهم خلکو په خپل علم پورې نه پرېښود ، اخیر خدای پاک ﷻ ته سوال کوي : وَضَاقَتۡ عَلَيۡكُمُ ٱلۡأَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ ﴾ خدایه ! په ما نوره زمکه تنګه شوه ،نورمې له دنیا څخه واخله ،زه دلته تنګ شوی یم نوخدای پاک ﷻ یې سوال قبول کړ داختر په شپه کې دمسافري په حالت کې وفات شو.

په ډېرو خلکو باندې دغسې تنګسیا راغلي دي خوخدای پاک ﷻ دې په موږ نه راولي څکه چې هغوی غټې هستي وې ،هغوی یې برداشت کولای شوای موږ ډېر عاجز یو ،خدای پاک ﷻ دې زموږ سره دخپل رحمت معامله وکړي ،ابتلاوې دې خدای پاک ﷻ په موږ نه راولي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا و مولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

# (٤٣) مجلس

## دلوړو مقاماتو دحاصلولو طریقې اواسباب

دیوغټ ولي الله نه څوک په داسې عنوان پوښتنه کوي چې دتادې په هغه خدای قسم وې چې ته به یې مخته دریږې ،دده لپاره عبادت کوي تاته خدای پاک د ولایت لوی مقام څرنګه درکړ؟

هغه ددغې خبرې په اوریدلو سره بې اوښه شواوپه زمکه راپریوت. څکه خدای پاک ﷻ ته دریدل لکه په دنیاکې چې موږ په عبادت دریږو داخو خلکوته قدر نه معلومیږي ؛خولمونځ دخدای پاک سره مخامخ خبرې دي دهغه حضور ته دریدل دي ، ددغې وجې نه په بخاري شریف کې راغلي چې حضرت نبي کریم ﷺ دقبلې طرف ته په یودیوال ولید ،چې چا بلغم توکړې دي؛ نود حضرت نبي کریم ﷺ په مخ مبارک کې دخفګان اثر پیداشو، په یوه روایت کې راغلي چې شګه یې را واخیستله اوهغه دیوال یې پرې پاک کړاوبیا وروسته قانون اوآدب ذکر کوي چې ای خلکو! څوک چې په لمانځه ودریږي نورب تعالی ﷻ دده اودقبلې په مابین کې دی ،دخدای پاک ﷻ حضور ته مخامخ ولاړ دی ،نودی دې دا بې آدبي نه کوي چې لاړې مخ ته توب کړي اونه دې ښي طرف ته لاړې توب

کوي،بلکې که ضرورت پیښ شي نوبیا دې چپ طرف ته لاړې توپ کړي اویادې دپښولاندې توپ کړي.

نودلته په لمانځه کې هم خدای پاک ﷻ ته مخامخ دریدل دي اوکه سړی عقل اوعلم ولري نو ددغو دریدلونه انسان ته داخرت دورځې دریدل په یاد شي اودخدای پاک ﷻ حضور ته به پیښیږي اودده دزندګۍ په هکله به پوښتنه ورنه کیږي ؛خو چې دچاسره چې دغه فکر پیداشو چې زه به د رب تعالی ﷻ حضورته وړاندې کیږم،زما نه به دخپلې زندګۍ په هکله پوښتنه کیږي ،نوطبعي خبره ده چې انسان له خدای پاک ﷻ نه ډاریږي اوبیا ګناه نه کوي، بیا په عبادت کې کوشش کوي ځکه چې د رب تعالی ﷻ په حضور کې دریدل اود انبیاء او اولیاء تر مخ دټول مخلوق په وړاندې سوال اوځواب ورکول ډیره مشکله خبره ده. بد عمله انسان دهغه ځای بیا چیرې توان اوطاقت لري ځکه هم خدای پاک ﷻ ددغو خلکو سره د:﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ﴾ وعده کړې دی ، چې څوک ددغې ورځې نه وډارشي ،چې زه به دخدای پاک ﷻ حضور ته وړاندې کیږم، نودهغه له پاره خدای پاک د دوه جنتونو وعده کړې ده. ځکه چې وډار شو نونیک عمل کوي اود بدو اعمالونه ځان ساتي . اودنیک عمل په کولو سره خدای پاک ﷻ جنت ورکوي اودبد اعمالو په وجه جهنم ورکوي.

نوهغه ولي ته یې چې داقسم ورکړ نو هغه اول ددې خبرې په اوریدلو سره بې هوشه شو اوکله چې راپه هوش شو نو خپل حال

ورته بیانوي . اولیاء کرام خپل حال چاته نه بیانوي خومجبور یې کړ ،نوورته وایې چې په ماکې څوکارونه موجود دي دهغه له وجې نه ماته خدای پاک ﷻ دامقام راپه نصیب کړی :

**اول** : داچې کوم شی په ماکې ژوندی و اوترقي یې کوله هغه ما مړکړ اوکوم شی چې مړ و هغه مارا ژوندی کړ.

په ما کې خواهشات نفساني ژوندي و ،نفس دترقي په لور روان و ،ګناوې اوخواهشات یې رانه غوښتل .

اودوهم داچې زما زړه مړ و ،دخدای پاک ﷻ ذکر یې نه کاوه،هغه مارا ژوندی کړاودخدای پاک ﷻ په عبادت اوذکر باندې شروع شو اوکله چې زړه اصلاح شي نو نفس کمزوری کیږي اوګناه جذبه پکې مړه کیږي اوجذبه دعبادت اواطاعت پکې ژوندۍ کیږي .

## په کوم زړه چې وعظ اونصحیت اثر نه کیږي هغه مړوي

حسن بصري ( رحمه الله ) ته یوسړی راغی او ورته وایې چې زما زړه ویده دی یعنې زه چې وعظ اونصیحت اورم زما په زړه کې اثر نه کوي نوداسې څۀ راته وښیه چې زما زړه را ویښ شي . حسن بصري (رحمه الله ) ورته وایې چې قرانکریم اواحادیث مبارک بیانیږي بیاهم دتاپه زړه باندې اثر نه کوي؟ دی ورته وایې هو! نوحسن بصري (رحمه الله ) ورته وایې چې دازړه ویده نه دی ،مړ

دی ،ویده چې وښوروي ویښیږي اوبیداریږي خومړ چې هرڅومره وښوروي ،لټ په لټ یې واړوې هغه نه بیداریږي.

ویده هغه زړونه دي چې دخدای پاک ﷻ نه غافل وي اوله لويو ګناهونو ځخه ځان ساتي لکن کله چې دی نیک مجلس ته ورشي اووعظ اونصیحت واوري نو زړه یې رابیدارشي اوبیا داخرت لورې ته متوجې شي.

خویوقسم داسې زړونه دي چې هغه مړه دي ،هغه که هرڅومره نصیحت اووعظ واوري بیا هم په دوی کې څه بدلون نه راځي ،اثر نه په کې پیداکیږي ،خدای پاک ﷻ مودې ورنه وساتې زمونږ داکثرو خلکو زړونه مړه دي.

نواول په ماکې چې کوم شی ژوندی و هغه ما مړ کړ اوچې کوم مړ و هغه ماراژوندی کړ.

**دوهم** : کوم شی چې ماته حاضر و ،هغه ما غائب فرض کړ اوکوم شی چې غائب و ،هغه ماهمیشه حاضر وګڼه .لکه قیامت ، جنت ،دوزخ اوداخرت نورټول احوال غائب و ،مونږ په سترګو نه دې لیدلي اودنیا اوددنیا شیان حاضر دي مونږ یې په سترګو وینو . نوهمیشه د جنت اودوزخ فکر راسره وي ،همیشه دخدای پاک ﷻ دحساب فکر راسره وي اوچې کوم حاضردي هغه مې شاته واچول ،پدغوکې مې چورت نه واهه نورب تعالی ﷻ دامقام راته نصیب کړ.

**دریم** : کوم شی چې فاني و ،هغه ماباقي فکر کاو اوچې کوم شی ماته په خیال کې راتلل هغه مافاني فرض کړل . دخدای پاک

ﷻ اطاعت اوبندګي ،له خدای پاک ﷻ نه ویره دخلکو په خیال کې فاني کیدونکي دي ځکه لمونځ دې وکړ هغه ولاړ تیرشي،صدقه دې ورکړه هغه تیره شي ،روژه یې ونیوه هغه تیره شوه نودخلکو په خیال کې فاني ورځي . پنځه روپۍ ولاړې نوکمي شوې اومادغه ټول باقي بلل ځکه چې په اخیرت کې ذخیره دي اوپاتې دي .

یوځل حضرت نبي کریم ﷺ په کورکې پسه حلال کړ اوحکم یې وکړ چې دا صدقه کړيځ . مابنام په کورکې پوښتنه کوي چې غوښه څه پاته دی اوکنه ؟ بیبیانو مبارکینو ورته وویل چې دایومټ یې پاته دی اونورمو ټول تقسیم کړ. حضرت رسول الله ﷺ ورته وایې چې نه ټول پاتې دی اودغه یومټ یې نه دی پاتې . ځکه چې هغه موصدقه کړه اوهغه داخرت ذخیره شوه .

نوکوم شی چې خلکو ته په خیال کې فاني ورتلل هغه مې باقي فرض کړل ،هغه سرمایه اوګڼه دی اوکوم شی چې خلکوته باقي معلومیږي ،چې ددنیا بنګلي،موټرې ،ښځه اولاد اوددنیا نور شیان دي . داخلکوته په فکر کې باقي ورځي خوما داټول فاني فرض کړل،چې داټول تیریږي .

اوس چې څوک ددې ولي الله اونیک سړي سوچوته فکر وکړي نوپه رښتیا هم داسې دی . اولیاء الله ډېر هوښیار وي ځکه چې هوښیار خدای پاک ﷻ هغو خلکوته ویلي چې فرمایي : إِنَّ فِي خَلْقِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱخْتِلَٰفِ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ لَءَايَٰتٍ لِّأُو۟لِى ٱلْأَلْبَٰبِ ﴿١٩٠﴾

اَلَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُودًا وَّعَلٰى جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سُبْحٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴾

يعني په اختلاف د شپې او ورځې کې دلائل د قدرت د خداى پاک دي له پاره د خاوندانو دعقل. دعقل خاوندان هغه څوک دي چې په ولاړه، په ناستې، په پروتې دخداى پاک ﷻ ذکرکوي اوزما په زمکو اسمانوکې سوچ کوي چې داخداى پاک ﷻ عبث نه دې پيداکړې، اوبيا دخپلو تقصيرتو سوچ نه معذرت غواړي چې اى خدايه ! ته له عيبونو څخه پاک يې اوته مې داخرت له عذاب نه وساتې. نوخداى پاک ﷻ هوښيار ورته ويلې دي.

نويوکس چې ولي کېږي هغه دخداى پاک ﷻ په ذکراوعبادت ولي کېږي ؛نودالله تعالى ﷻ فرموده،ده چې دوى هوښيار دي اودوى کامل عقل لري اودکامل عقل بيا ښه فيصله وي اودبيکاره عقل بې کاره فيصله وي.

اوس نو دهغه (ولي) د عقل فيصلوته تاسې وګورئ چې کوم شى ژوندى دى هغه ما مړ کړځکه چې دنفس څومره ترقي راځي نوهغه دانسان دهلاکت سبب ګرځي،ځکه چې دښمن دى اودښمن به مړ کوې اودانسان زړه اودهغه روح چې دانسان ددنيا اواخرت دکاميابي ذريعه دى نودخپلې کاميابي به کوشش کوي ،ترقي به ورکوي.

اوچې کوم شې دخلکو په نزد غائب و ،له ده (ولي) سره هغه هميش موجود و، چې قيامت را روان دى کله چې داسوچ له چا

سره پيدا شو نوبيا به هغه له دنيا نه دست برداره وي اوداخرت
طرف ته يې سوچ اوپام وي.
زموږ خو ټول سوچ دنياته وي، نوچې چېرته ښځه موټروويښو هم
زموږ سره حرص پيداکېږي چې داسې موټر ،ښه بنګله اوښه
جايداد ووينو نو وايو چې کاش ! دا زما هم واى .نوپه موږ کې
ددغوشيان فکر موجود وي اواخرت رانه پاته شي اوهغه خلک
چې شپه اوورځ دالله تعالی ﷻ په بندګي اوعبادت لګيا وي
اوداخرت طرف ته يې فکر وي نودخلکو له پامه ساده ورځي او
وايې چې دا ليونيان اومجذوب دي . په روايت کې راځي چې
دخداى پاک ﷻ دومره ذکر کوئ چې دخلکو له پامه ليونيان ورشئ
. چې داخوليونيان دي په هيڅ نه پوهيږي ،شپه اوورځ په طاعت
اوعبادت باندې ،په ژړاو تيرې کړي
نوغرض دادى چې هروخت موږ ته نصيحتونه کېږي نوددغو
نصيحتونوسره بايد سوچ اوفکر وکړي لکه هغوخلکو چې دځان
سره دعقل فيصلې کولې دهغو فيصلو په رڼاکې دخداى پاک ﷻ
دوستي ورته پيداکېږي ،دالله تعالی ﷻ دوستان ورنه جوړېږي
نوموږ هم چې دځان سره داسوچ وکړو چې دغه دنيا خوربښتيا فاني
ده ،دانفس مې تباکوي اواخرت را روان دی . له مانه به سوال
اوځواب کېږي ،زه به د رب تعالی ﷻ حضورته وړاندې کېږم ، زه
به دحضرت نبي کريم ﷺ حضور ته وړاندې کېږم ،په کوم عمل به
زمانه خداى پاک ﷻ خوشحاله کېږي؟ اوپه کوم عمل به له مانه
نبي کريم ﷺ خوشحالېږي ؟

په کوم عمل به له مانه اولیاء اوعلماء خوشحالېږي. کله چې داسوچ له انسان سره پیداشو نو دغه انسان کامیابي پیداکړه. اوابدي زندګي یې برابرېږي اوخپل اهل اوعیال باید پدغه باندې عادت کړو چې دسهار نه متصل باید څه ناڅه دخدای پاک ﷻ ذکر وکړي، کار دي یوڅه وروسته کړي اوله ماذدیګر باید څه ناڅه ذکر وشي اوهمدارنګه بیګا باید څه ناڅه دخدای پاک ﷻ ذکر اوتلاوت وشي، ناوخته دې خملي اوهغه دابدي زندګي غم دې وخوري .دادنیا اوڅه چې په دنیاکې دي داټول ختمیدونکي اوفاني کیدونکي دي . بیا مو داولاد اوکورنۍ زندګي ښه کېږي اوزموږ ماحول به ښه کېږي . کله چې کورنۍ نیکه شوه بیابه طبعا په سړي کې دنیکي اثر پیداکېږي ،دچاسره چې کینې په سړي کې هغه اثر پیداکېږي اوچې کورنۍ خرابه شوه ،په کورکې چې لوی بدعمله وي کشر خامخا هغه بد خوی ورنه زده کوي دارنګ چې د مشرانو د دینداري طرف ته سوچ شي نو کشران هم هغه طرف ته هڅه کوي اودینداره کېږي .

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا و مولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين

